# فهرست

# تمهيد

دنيا وه روڼې لمر چې، څه وخت و وهله د شپې لاره
نو ژړامې د ګل مخ ته، نېغه کړه د اوښکو داره
نېز* زما د اوښکو یو ورو، د نرګس له سترګو خوب
او هم شنه مې زرغونه کړل، سوې بڼغ لېمو څڅوب
وېناګانې مې زورناکې، ملیار ښې ازمایلې
چې مصرعې مې یې وکرلې، تیارې توري و رېبلې
په چمن کښې یې لکه تخم، بس زما اوښکې خورې کړې
تنسته یې د باغ بودې ته، دا زما سوې نارې کړې
په قبضه کښې لمر زما دی، که هر څو ذره یم لره
ځه لرم په ګرېوانه کښې، رنېدلې سل سحره
جام د جم به څه روښان ؤ، دا زما خاوره بلېږي
چې لا نه دی زېږېدلې، هغه هم په کښې ځلېږي
زما فکر غشي، وېشتې، ده هغه هوسۍ پخوا لا
چې تر نني ورځې پورې، نه شته نه هغه پیدا لا
شنه چې چیرې به ټوکېږي، نن یې زه لرم چمن کښې
لا به یې څانګې غوټۍ سپړي، هغه ګل مې په لمن کښې

---

*نېز یعني سیلاب

ما څنبل د تنډک تکور کړو، وران او بيا مي هسي خوار پرېښي
آدم خان شومه شاباز مي، د عالم د رګك په تار کښېښي
دا زما د فطرت ساز دی، د ده داسي نوی ترنګ دی
په نغمو مي نه پوهيږي، څوک که ناست زما تر څنګ دی
په دې غونډه د دنيا کښې، زه راغلی نوی لمر يم
د اسمان له دود دستوره، لا تراوسه نا خبر يم
لا زما رڼا ده پټه، خوره نه ده پر هر لوري
لا زما د ځ د ځل نه، تښتېدلي نه دي ستوري
کړې چرته لا په بحر، پلوشو زما ګډا ده
نه د غره ناوې موندلې، سره نکريځه لا زما ده
د دنيا سترګې لا روږدې، نه دي زه داسي ځليږم
زه له دې غمه دکيږم، څنګه۔ څنګه چي ورخيږم
لاره شپه مشرق ته ګوره، روڼ سحر يې راختل کړي
دنيا ګل او نوې پرخې، پرې دپاسه خسول کړي
د سحره ويښېدونکو، زما تاسو ته دي سترګې
مبارک دي چي لنبې مي، ګڼې پاکې او هم زبرګې
زه هغه خوږه نغمه يم، له شابازه بې پروا يم
يو آواز يم نن مي اورې، له شاعره د صبا يم
دا موجوده زمانه مي، ده ناپوهه په اسرار لا

د یوسف جوګه مې نه دی، سور دی هغه شان بازار لا
یو هم نه شته قدر وونکی، که زاره یاران مې ډېر شي
طور مې سوزي لا رته ګوري، که موسیٰ چرته راتېر شي
د یارانو قلزم څاڅکي، موده شوې یخ نیولې
زما څاڅکي سمندر دی، جلې۔ جلې راختلې
دا چې زه سندرې وایم، دا به ځان ته بیل جهان وي
دا د هغه جرس ږغ دی، چې د ده به بیل کاروان وي
داسي هم ډېر شاعران ؤ، پس له مرګه شول پیدا دوی
خپلې سترګې یې کړې پټې، زموږ سترګې کړې بینا دوی
رابنکاره شول د نازونو، سامان راوړو هغه تللو
ګوره څنګه زرغونه شول، لکه ګل له خپلو څلو
په زرګونو کاروانونه، په دې لاره چلي تېر شول
څوک یې پوه په بنکالو نه شول، د اوبن پلونه غلي تېر شول
زه عاشق یم تل تر تله، ویر ژړا زما ایمان دی
د محشر شور مې په وړاندې، د قیزې زغلې روان دی
څو د تار د اندازې نه، دا نغمه زما سیوا ده
ساز مې پاتې شو که مات شو، نه څه ویره نه پروا ده
چې زما د دې سېلابه، څاڅکی وشي جدا بنه دی
که قلزم یې له اثره، لېونی شي نو لا بنه دی

دا زما داسي طوفان دی، چي په سيند کښې نه ځاييږي
دومره دی خورېدل غواړي، په بحرونو کښې به کيږي
هغه غوټه چي په خپله، له غوړېدو ګلستان نه شوه
پر ده نه اوري جوګه مي، د سپرلي د باران نه شوه
تندرونه۔ تندرونه، دي ويده زما په ساه کښې
صحرا ګانې غرونه غاړې، څه رانغاړم په برېښنا کښې
شه را وړاندي مي قلزم ته، که طاقت لرې صحرا يې
زما تندر په سر واخله، که څه زور دي وي سينا يې
ژوند* به چينه يې په برخه، ما ته راکړه ځه يې غور کړم
په پټ راز د ژوندانه يې، له ازله څه خبر کړم
مړه ذره مي را ژوندۍ کړه، په تاوونو د خبرو
خوار چينجی مي اورکی کړو، د ځلا او د وزرو
لکه ما د راز خبري، نه ويلې چا تر اوسه
مرغلرې زما غوندي، نه پېيلي چا تر اوسه
ټول عمري عيشونه غواړې، رانزدې شه ما ته راشه
که دا مځکه آسمان غواړې، راشه راشه خوا ته راشه
زوړ اسمان په غوږ وهلی، وايم راز واوره قالو نه
له خوږو خوږو يارانو، پټېدای نه شي حالونه

* آب حيوان يا آبِ حيات

ساقي! واچوه شراب نن، خو تر مورګو راته جام کړه
چي غمونه ځنې ورك شي، زړه مي داسي په آرام کړه
هغه اوبه چي ترې شغلې ځي، او چي اصل يې زمزم دی
که يې څښونکي ګدا هم وي، نو په خدايګو شاه عالم دی
چي د فکر قوتونه، پر ډېرېږي هوشيارېږي
که بيداري هم وي سترګې، لا پر نوري بيدارېږي
چي شغله يې د مچ وزر هم، دروند پر ځای لکه د غر کړي
چي قوت د شنو زمريو، ګيدړانو ته هم ور کړي
کړي توري خاورې پورته، ثريا پوري شي لاړې
چي يو څاڅکی سمندر کړي، هم يې تله هم بې غاړې
چي چپتيا کاندي په مثل، د محشر د ميدان کوکې
چي د باز په وينو سرې کړي، د درو د زرکو نوکې
اې زما ساقي! را پاڅه، ما ته را هغه شراب
چي زما د فکر شپې ته، کړي ياران نور د مهتاب
چي تېروتې لاروی زه، د منزل په لور روان کړم
خوند د ډېرو تلوسو هم، ننداري لره سامان کړم
چي په نوي شوق لټون کښې، بدې پور ته موټې چوکړم
چي د نوي ارمان سيند کښې، ځان په خپله ورلاهو کړم
چي د ذوق د خاوندانو، د زړه سر د سترګو تور شم

چې یو ږغ شم د رازونو، د دنیا په غوږ کښې خور شم
*چې په نوې جستجو کښې، په مختګ وي توند رسا شم
چې د نوي ارزوګانو، سره زه لکه اشنا شم
چې دا جنس د ویناګانو، زه ډېر لوی نرخ ته کړه کړم
په څولو۔ څولو مي اوښکې، مرغلري ورسره کړم
د رومي فیض مي موندلی، چې دا خلګو ته بیان کړم
چې د پټو خزانو دا، دفترونه راعیان کړم
د هغه د روح خو پنګه، سرې لنبې د اور د لی ده
او په ما کښې ساه غرېږي، په مثال یوه سپرغۍ ده
پتنګ زه یم خو ناڅاپه، بله شمعه په ما راغله
د شرابو لویه چله، په دې لوري زما راغله
زما تن ؤ سپېرې خاوري، د روم پیر لکه کیمیا کړې
دا زما له تورو خاورو، رڼاګانې را پیدا کړې
ذره پورته شوه له مځکې، دومره وخته په پاس
چې د لمر و پلوشو ته، دا ور ورسوي لاس
زه یم موج او رومي بحر، تل ته یې ځان غورزوم لري
لوی ارمان مي دی په زړه کښې، د مقصود د مرغلري
د هغه د شراب زور دی، چې دا مستي مستي وایم

* د دي شعر لفظي ترجمه داسي وشوه

د هغه د ساه سور اور دی، چې دا زه وربانديې پایم
د شپې پروت وم ناقراره، له خوږ زړه ختی فریاد ؤ
په زارو او په دعا مې، د چپتیا جهان آباد ؤ
د دې وخت درانه غمونه، زما خوله کښې حکایت ؤ
وه پیاله مې تشه توره، زما دغه شکایت ؤ
اخیر داسې شومه سترې، سر مې کښېښو نور وه نه شوم
پرېوتم د لارو بادو، سترګې پټې شوې ویده شوم
د روم پیر مې په خوب ولید، د راستۍ او علم کان
دا هغه چې یې دی کښلی، په فارسۍ ژبه قرآن
وې چې اې په عاشقانو، ته بې شانه ډېر مینه
واخله ګوټ د عشق شراب دې، درکوم په پیرزوینه
هنګامه د محشر جوړه، کړه عاشقه خپل ځیګر ته
سر ښیبښې ته کړه ور مخکښې، سترګې ونیسه نشتر ته
خنداګانې په پړق پړق کړه، د فریاد او ژړا پنګې
د ځیګر ثطرې کړه اوښکې، تکې سرې په وینو رنګې
څو به چپ لکه غوټۍ یې، شابه ته غوړېدلی ګل شه
کړه خوږې وږمې ارزانې، څه ورڅه په کار د بل شه
سپېلنې غوندې د ننه، په خپل سر کښې لرې شور ته
خپله کډه کړه ور کډه، سرو سکروټو ته د اور ته

د خپل تن ذره ذره کړه، د جرس غوندي لړځانه
فریادونه چي ویده دي، کړه را ویښ له هرې خوا نه
دا دنیا غونډه رڼا کړه، لمبه وکړه ته خو اورې
سوځوه له خپله سوزه، د دنیا خلقې نورې
لکه موج د شراب وکړه، په کوزه کښې ځلا ډېره
د بابا د میکدې کړه، ټول رازونه رابرسېره
اندېښنه که آئینه وي، ته شه کاڼی مه اسرې کړه
د بازار په منځه لار کښې، دا ښیښه ذرې ذرې کړه
له درونه* شپېلۍ غوندي، پیغام یوسه په صدا شه
هغه ورک لېوني قیس ته، لکه زېری د لیلا شه
شابه نوی یو انداز ته، خپلو چیغو ته ایجاد کړه
په یو بل ډول شورونو، دا مجلس ښائسته آباد کړه
پاڅه نوې ساه سمند کړه، هر ژوندی وربادني سور کړه
په یو "قُمْ" یې لکه اور کړه، د ژوند جوش د ژوندي نور کړه
پاڅه نوې لاره واخله، روان اوسه پرمختګ ځه
سوداګانې زړې پرېږده، په سم رو په بڼغ او زوک ځه
له وینا سره اشنا شه، خوند یې واخله وه زنګېږه

* درون: اول نیم، فتحه دویم سکون، درېیم فتحه، څلورم سکون، په پښتو کښې نسبتان ته وایي.

د کاروان جرسه وینې شه، څو به چپ یې و تمګیږه
د رومي بابا خبرو، کړو په تن را پوري اور
د شپېلۍ غوندي مي ډک شو، سر تر سره تن له شور
لکه ترنګ شو مه را هسک زه، له خپل تاره شوم آزاد
جنتونه د نغمو ما، کړل غوږونو ته آباد
د خودۍ په مخ پلو وه، له یو واره مي کړو لرې
ما یې تولې رابښکاره کړې، د اعجاز پټې خبرې
زه د ختې ګوډاګۍ وم، ډېر کچه بې حقیقته
یو نیمګړی یو بېکاره، ډېر بې قدره بې قیمته
عاشقۍ وسولوم، پس له هغه بنیادم شوم
څنګه څو* او په ښو بدو، هله پوه د دې عالم شوم
پلمې او وجي د اسمان، اوس چي ښوریږي زه یې وینم
د سپوږمۍ په رګ کښې وینې، چي بهیږي زه یې وینم
ما به تل په نورو شپو کښې، د انسان دپاره ویر کړو
نو د ژوند د راز پلو مي، ډېر په ګرانه سره څیر کړو
د امکان دغه دنیا چي، ما په مثل د کارګاه کړه
د بقا د راز خبره، په مشکله ما پیدا کړه
د دې دور توري شپې ته، که سپوږمۍ غوندي زینت یم

---

* کیف و کم.

اې د پوهي خاوندانو، د پښتو خاورې د ملت يم
د هغه ملت چي بړغ يې، په ګټ ګټ د جهان خور دی
چي د نوي نغمې تاؤ يې، يخو زړونو وته اور دی
چي ذرې يې وه کړلې، او لمرونه يې انبار کړل
چي يې جمع په رشه کښې، هزارها رومي عطار کړل
اسويلی يم بره خېژم، تر آسمانه زما نيت دی
که هر څو لکه لوګی يم، زما اور سره نسبت دی
له قلمه مي شول توري*، دا د فکر پروازونه
ټول د نهو آسمانونو، يې کوزه واچول رازونه
چي يو څاڅکی دومره لوی شي، د سيند ساری په دنيا شي
چي ذره دومره و غوړيږي، چي بس بې سره صحرا شي
مثنوي چي زه ليکمه، شاعري مي ارمان نه دی
بت ګري بت پرستي هم، څه مقصد او ايمان نه دی
د فارسۍ نه بېګانه يم، زه د هند د لاس سلی يم
لکه نورې ختې مياشته، لاس کښې تش تور کنډولی يم
مه زما ځنې ښايست، او مه خوبۍ د بيان غواړه
مه زما ځنې طرزونه، د خوانسار اصفهان(2) غواړه

---

* (1) حروف
* (2) خوانسار او اصفهان د ايران دوه مشهور ښارونه دي چي هغو خاورو د فارسي ډېر نوموړي شاعران زيږولي دي.

مورنۍ ژبه منمه، تر شکرو دا خوږه ده
خو فارسي په وينا طرز کښې، له دې خپلې لا خوږه ده
زما فکر مسحور وکړې، د دې ځل ته ځلېدونې
اوس زما قلم ته ګوره، شو له ښاخ د طور ونې
زما فکر چورلکونه، بره آ خوا له ګردون خوري
تخيل زما اوچت دی، د فارسۍ سره سمون خوري
ګوته مه نيسه کوزې ته، وي به خاوره که ښيښنه ده
يو څو ګوټه شراب وڅښنه، چې نشه يې بده که ښه ده

%%%

# د دنيا د نظام اصل له خودۍ څخې دی

ورته ګوره د خودۍ نه، د دنيا ګرم بازار دی
د خودۍ رازونه سپړي، ترجمان د ساز هر تار دی
چې خودي شوه رابيداره، او دې وکړې غزونې
رابښکاره يې يو جهان کړ، د پوهنې ځان بينې
جهانونه جهانونه، پټ پراته د دې په ذات کښې
دا ډېر ډېر څه راپيدا کړي، چل يې شته دی په اثبات کښې
دې جهان په دښمنيو، بس په دې چل ولړلو
چې له ځانه يې ځان بيل او، يو پردی څيز وګڼلو

دا په خپله له خپل ځانه، د پردو وجود پیدا کړي
چې جنګ تود شي خوند يې واخلي، او سره دا خپله خوا کړي
کله ده په زور د متو، وژلل کاندي له دې نیته
چې ځان وه تلي خبر شي، له خپل زور او له قوته
د خودۍ ژوندون له څه دی،؟ بس د ځان له تېر باسلو
ژوند هغه چې لکه ګل وي، بس د وینو په لامبلو
چې يو ګل د دې ارمان وي، سل چمنه ځکه وران کړي
د يوې نغمې دپاره، روا سل ژړا فغان کړي
يو اسمان لره ښايست کړي، سل سپوږمۍ او بلا ستوري
سل بحثونه کړي دپاره، د يوه مطلب د توري
ډېر زياتی او بې خوږتيا دي، دا د دې کبله کيږي
معنوي جمال يې شوق دی، چې تکميل ته ورسيږي
د شيرينې ښايست ګوره، تريخ فرهاد لره ژوندون کړو
سل هوسۍ يوې نافې يوړ، هم يې ژوند په ميږتون کړو
رڼا مخ که نه د شمعې، ځلېدلی بلېدلی
د پتنګ به نه دا برخه، نه په اور به سوځېدلی
خودي ډېري د نن نخښې، و په خپل قلم صفا کړي
دا د دې دپاره کړي چې، د صبا سحر پیدا کړي
په شعلو سل ابراهیمه<sup></sup>، وسول دې په څو څو ځله

ان تر دې چې يې ډيوه کړه، د يوه محمد بله
دا د بخته په عمل کښې، کله څه شي کله څه شي
هم عامله هم معموله، هم اسباب علل څه نه شي؟
پاڅي! پاڅوي الوزي، برېښي هم په مخه ټښتي
سوځوي ځلوي وژني، مري او بيا ليدی شي لوښتي
څه د وخت په لوی ميدان کښې، د دې اس په تړو زغلي
دا چې پورته اسمان ويني، د پښو دوړې يې دي ختلي
دا دنيا ځولۍ د ګلو، بس د دې له ګلکارو ده
توره شپه د دې له خوبه، ورځ د دې له بيدارو ده
سرې سپرغۍ خورې ورې کړې، دی له خپلو شعلو اوره
جز پرست يې عقل څنګه، په تعليم سره کړو ګوره
چې د ځان په وژلو راشي، څنګه برخې برخې دا شي
لړه غوندې چې خوره شي، لويه دا لکه صحرا شي
کله کله ځان راټول کړي، دا و نغاړې وزرونه
له خوروالي را يو ځای شي، و دريږي لکه غرونه
خپل جوهر ښکاره کوي دا، د خودۍ دغه عادت دی
په ذره ذره کښې وينه، ويده پروت د دې قوت دی
قوت دی خو پروت دی غلی، عمل کړو ته ناقلاره
سببونه مدام ګوري، د عمل د کړو دپاره

د دخودۍ له زور قوته، د دنیا د ژوند سمون دی
چې وي دا څومره مضبوطه، نو مضبوط هومره ژوندون دی
د خودۍ توری چې یاد کړي، د یو څاڅکي کړم خبره
نو که دی خړې اوبه وي، نو خپل ځان کړي مرغلره
د شراب خودي کمزوري، نو دوی ځکه بې جثه شول
چې په کوم صورت ؤ لوښي، چې ور پرېوتل هغه شول
دا منم د ځان په څېر کړي، هر صورت د شراب لوښی
خو زموږ له لاسه اخلي، حرکت د شراب لوښي
که لوړ غرونه خودي پرېږدي، نو به هم پرته صحرا شي
د دریاب څپې څپې به، یې د عمر ویر ژړا شي
موج په شکل څو د موج وي، په سینه د سیند په زړو ځي
د دریاب پر اوږو باندي، د اوبو بېړۍ کښې سپور ځي
چې په ګېنه کښې نور غونډ شو، ځکه شوې د لیدو سترګې
د جلوې په تلاش ګرځي مدام شوې په کتو سترګې
چې شینکي له خودۍ وموند، ؤ قوت د ټوکېدلو
نو د ده همت چمن ته، سینه څیر کړه و ختلو
شمعې ځان ته چې ځان ووې، شوه مضبوطه ځان یې ځان کړو
دې ذرې کړلې راغونډې، نو د ځان کور یې ودان کړو
خو په ځان ویلې کولو، چې دا راغله ځان یې سپک کړو

خپلو اوښکو کښې يې خپله، جاله ډوبه ځان يې ورك كړو
كه غمې په خودۍ كلك وای، او خپل ځان يې پېژندلی
نو به وه د بل له لاسه، داسي ولي پرهر ژلی
د پردۍ نامې په پنگه، ده د ده نشه ختلې
درانه مار د پردي نوم دی، د ده ولې لگولې
په خپل ځان باندي ښه کلکه، هم محکمه ده دا مځکه
نو سپوږمۍ د دې له سره، چورليدني کړي تل ځکه
چي د مځکې ځنې هم ډېر، په خپل ځان قوي دا لمر دی
لكه سحر يې نظر دی، او د مځکې گل د سر دی
وړي له سترگو زنبوني، د چنار څومره شوکت دی
دی د ده له برکته، كه د غرونو څه عزت دی
تنسه بوده يې ښکاري، چي جامه د ده له اور ده
جره يې بس يوه دانه ده، خو سر هسكه په بر لور ده
د ژوندون په قوتونو، چي خودي ځان پهلوان کړي
كه ژوندون وره واله وي، لكه بحر يې روان کړي

%%%

# د خودۍ ژوندوند مقصدونو پيدا كولو ځنې دی

د ژوندون بقا که غواړې، مومه يې بس په مدعا کښې
دا کاروان چي سم پر لار کړي، دی جرس په مدعا کښې
چي ژوندون يې تل لټون وي، له ژوندو هغه ژوندی دی
چي آرزو لري په زړه کښې، په لټون کښې ګرندی دی
زړه دی کور آرزو چراغ دی، لره يې بل نه چي وژلی
هسي ته خاورين وجود ستا، شي د تورو خاورو ځلی
پکښې ساه غوندي آرزو ده، دا جهان که يو صورت دی
د هر هر څه په فطرت کښې، دا ارزو يو امانت دی
تمنا زړونه تاؤ ده کړل، تمنا رڼې سينې کړې
دا خو تاؤ د تمنا دی، چي سينې يې آئينې کړې
تورې خاورې په الوت کړي، قوت ور کړي تمنا ده
د انسان عقل کليم ته، لار بيونکې خضر دا ده
د ارزو له ډېره سوزه، په زړګي کښې ژوند پيدا شي
د ژوندي زړه په دنيا کښې، هر باطل وه مري فنا شي
د آرزو پيدا کولو، چي شي پاتې غه څه زړه دی
د الوت وزر يې مات دي، او جوګه د هيڅ هم نه دی
د خودی هنګامې تولې، تمنا کړې را ولاړې
دا يو موج دی ناقلاره، خودي سيند بې تل او غاړې
مقصدونه که مرغی دي، نو آرزو يې په سر جال شي

د ارزو له برکته، په تنظیم واړه افعال شي
چي ارزو په زړه کښې نه وي، ژوندی هم په مړو شماره
چي دننه سوز يې ورك شي، لمبه هم کښېني قلاره
دا زموږ بيداري ستر‌ګې، اصل څه لري خبر يې؟
د ديدار لذت شول ګټي، دا ښښتن چي د نظر يې
زرګو وموندی په تول کښې، ګلګي پښې او سرې يې نوکې
د نغمې له سعي چوڼيو*، وموندي ژبو مخو کښې
شپېلۍ ووته له بڼه، چي بهر شوله آباده
پکښې سوې نغمه قيد وه، نو هغه هم شوه آزاده
تل ناويات لټونکي عقل، دا ختونکی تر اسمانه
څه پوهيږي چي پيدا شو، د اعجاز له کومي خوانه؟
د ارزو په دولت ډکه، زندګي چي مړه خوا شوه
پس له هغه يې د نس نه، عقل زوېګنده پيدا شوه
د قامونو د تنظيم او، قانون دود حقيقت څه دی؟
علم او فن چي تل بهيږي، د دې رود حقيقت څه دی؟
شوه آرزو له خپله زوره، پړوکې پړوکې تاره تاره
دا ترې جوړ شول صورتونه، شوه بهر چي له زړه بناره
لاس او فاش او مغزه ستر‌ګې، که غوږونه ستا زما دي

* بلبلو.

فکر خیال شعور او یاد شول، قوتونه که اعضا دي
ژوند چي اس ته پونده ورکړه، و وتو د جنګ میدان ته
دا وسلې يې کړلې جوړې، و ساتلو د خپل ځان ته
دا خو تش خبرېدل نه دي، دی د علم، فن مقصود بل
بس غوټۍ او ګل خو نه دي، د ښایسته چمن مقصود بل
حفاظت د ژوندانه ته، ځار شم علم وسیله ده
چي خودي کړي قوتناکه، علم دی کار ته حیله ده
علم، فن د کور دننه، د ژوندون کره پیدا دي
دغه دواړه يې مریان دي، د ژوندون سره پیدا دي
ژوند خو راز دی اوچت پاڅه، اې له رازه بې خبره!
د مقصد په شراب مست شه، ځه میدان ته تېر له سره
د سحر غوندي روښانه، لا د نور وي ستا مقصد
چي دا ما سیوا ایره کړي، چي سور اور دی ستا مقصد
ستا مقصد د دومره بر وي، چي اسمان وي ورته لاندي
ستا مقصد دي داسي غور وي، چي د زړونو وړنې کاندي
چي د زوړ باطل د خوني، ردي وباسي بهر دی
چي يې بحر له شوره ډک وي، سر تر سره وي محشر دی
له زیږون د مقصدونو، په دنیا کښې موږ ژوندي یو
د ارزو په پلوشو کښې، موږه ښکارو ځلندي یو

%%%

# خودي له عشق او محبت ځنې مضبوطتیا مومي

چي پوهان يې خودي بولي، ده نقطه د نور بليږي
دا سپرغۍ د ژوندانه ده، زموږ خاوره کښې ځليږي
دا له مينې وده اخلي، مضبوطيږي په پائيدو کښې
د ژوندون په سوځيدو کښې، ځليدو کښې بليدو کښې
هم د مينې له اثره، سره لمبه د دې جوهر شي
چي يې پټ څه ممکنات دي، ورو ورو وده کړي بهر شي
دا ځايي د عشق له فيضه، غوندووونکي ده د اور
دی د عشق ځنې زده کړی، چي رڼا کړي جهان خور
عشق د توري له خنجره، نه وېريږي نې پروا ده
عشق پيدا دی نه له خاورې، نه اوبو او نه له باده
په دنيا کښې عشق هم روغه، او هم جنګ دی اې هوشياره!
عشق اوبه د بقا هم دي، هم ده توره جوهر داره
عشق چي يو نظر پر وکړي، نو شين ګټ وچوي پرق شي
چي کامل خو د حق عشق وي، اخير سر تر سره حق شي
اې! د عشق سبق ته کښېنه، يو بې مثله محبوب غواړه
روغې سترګې د نوح غواړه، مين زړه د ايوب غواړه

يې د تورو خاورو موتي، دغه خاوره د کيميا کړه
د اخلاص په شونډو يې ښکل کړه، د کامل درشل پيدا کړه
د رومي غونډي په خپله، کړه دا خپله ډيوه بله
د تبريز په سور انکار کښې، تمام روم وسوځه هله
يوه پټه معشوقه شته، ستا د زړه په کور کښې ننه
که دي سترګې وي نو راشه، چې در وې وينم مينه
معشوقې ورته لوګي شه، دغه داسي عاشقان دي
زړه راکښونکي نومورې، ميخوريز ښکلي روښان دي
د هغې معشوقې مينه، د زړه زړه دومره پيدا کړي
تورې خاورې پورته يوسي، ساری يې دا د ثريا کړي
د نجد خاوره هسي تونده، د هغې له برکته
چې په وجد کښې بره لاړه، تر افلاکو هم اوچته
په زړګي د مسلمان کښې، لوی مقام د مصطفیٰρ دی
که زموږه څه عزت دی، دا له نام د مصطفیٰρ دی
طور د هغه دوړو موج دی، چې يې له خوني لاړې لړې
د کعبې لوی دوږه کړه، د هغوی هغه جونګړې
ابد کم دی دومري لوی دی، رپ د سترګو له اوقاته
وسعتونه ابد وموند، د حضورρ له پاکه ذاته
دوی په ارخ لګولو، د لمسي په ټوټه باندي

د کسریٰ تاج يې را پرېوت، د امت د پښو د لاندې
د حرا د غار خلوت ؤ، د جهان سنبالې نيت هم
رده کښېښوله د قام، او د قانون او حکومت هم
سترګې يې پټې په شپو نه کړې، چې يې دومره ناکام وکړو
د خسرو د تخت د پاسه، يې امت هله آرام وکړو
شول فولاد په جنګ کښې جاؤ له، چې به دوی توري وهلې
په لمانځه کښې به د اوښکو، مرغلرې دوی پېيلې
چې دعا يې د نصرت کړه، نور يې وو امين ويونکي
د شاهانو د نسلونو، وه دا توره غوځونکې
دوی يو نوی آئين راوړو، په نړۍ کښې يې خېر ډېر کړو
د وړو نبو تولو قامونو د ګډيو وار يې تېر کړو
چې د دين کونجۍ يې راوړه، ور يې لرې د دنيا کړو
محمدρ غوندې بل ځوی، دې دنيا کله پيدا کړو
په نظر کښې يې سره ساری، کوزه بره سپين او تور
خپل مريې سره دوی کښېناست، په يوه تالۍ او شکور
په يو جنګ کښې مصطفیٰ ته، پېښنه شوه يوه اسيره
ؤ د "طی"* قبيلې مشر، د هغه لور وه زهيره

---

* د عربو د طی نومي قبيلې سردار حاتم چې ډېر سخي ؤ، دا د هغه لور وه، یا د هغې قبیلې د بل کوم سردار لور وه.

پراته يې پښو ته ځنځيرونه، بې پرده راغله سر توره
سترګې يې خښې وې پر مځکه، له حيا شرم پېغوره
چې نبيρ د حيا دارې، سر تور والي ته نظر کړو
کړه يې پټه په پړده کښې، خپل څادر يې ور پر سر کړو
مور د طي له هغې ښځې، ډېر بې ستره بې څادر يو
په قامونو د دنيا کښې، ورک او سپک د مچ وزر يو
د هغه د رڼې څڼې، مو اسره ده په محشر کښې
په دنيا کښې به هم مونږه، هغه پټ کړي په څادر کښې
که يې لطف دی که قهر، دغه دواړه يې شفقت دی
هغه يې دوست لره رحمت دی، داې دښمن لره رحمت دی
دښمنانو ته چې يې کړله، د رحمت درزازه لرې
مکه والو ځولۍ يوړې، ــ لاتثريب*ــ مرغلرې
د وطن له قيده خلاص يو، د توحيد په لاره سر مونږ
که له دوو سترګو و خيزو، اوسو يو لکه نظر مونږ
که هر څو مونږه خواره يو، په حجاز او چين ايران کښې
د يوه سحر د پرخې، څاڅکې يو په ګلستان کښې
د بطحا د ساقي سترګو، مستي کړله زمونږ ژوند

* لاتثريب عليکم اليوم: ستاسو دپاره هيڅ تعزير نشته، هرکله چې رحمة اللعٰلمينρ مکه فتح کړه نو هغه عرب کفار ورته د قيديانو په صورت ترلي پېښ شول کومو چې دوی ته ډېرې ايذاګانې ور رسولې وې، د انتقام حق هم ؤ، او قوت هم ؤ، خو د عالمونو رحمتρ ورته دا پورته فقره وفرمايله، او ټول يې وبخښل.

د شراب او کوزې غوندې، موږ وېله سره خوند
هغه ورکې له دنیا کړې، د نسب نسل خبرې
اور یې وسوځول داسې، خس خشاک له منځه لرې
بوی مو یو دی که ګلونه، د صد برګ سره ببیل ښکارې
ساه د دې نظام هغه دی، او په خپله دی بې سارې
د هغه په زړه کښې موږه، د راز پټه خزانه وو
چې ناره یې کړله پورته، راښکاره شوو په بانه وو
شته زما غلې شپېلۍ کښې، د هغه د عشق شورونه
سل سندرې اور ورینې، زما خوا کښې شته اورونه
د هغه مینه کوم څیز دی، درته څه induced ووایم ګلو
د هغه په بېلتانه کښې، وچ لرګی هم زړېدلو*
تجلې دي د هغه چې، د مسلم هستي رڼا کړي
د هغه د لارې دوړې، لکه طور غرونه پیدا کړي
دا زما وجود ښکاره شو، د هغه په آئینه کښې
ترې زما سحر رڼا شو، داسې لمر یې په سینه کښې
په هر دم چې ناقرار یم، بس په دې کښې مې ارام دی
له سحره د محشر هم، لا ډېر تود زما ماښام دی

* وایي چې د جماعت د کوټې یوه د لرګي ستن وه، هغې ته دوست د خدایρ تکیه لګوله، یوه ورځ هغه ستن بدلولې کېده، ناڅاپه هغې ستنې فریاد وکړو.

د سپرلي وريځ هغه دی، زه بوستان اوري راباندي
دا زما د انګور جرې، د هغه په نم دي تاندي
ما د مينې په پټې کښې، سترګې تخم و شيندلو
ننداره د ښکلي مخ مي، حاصل ځکه و ميندلو
د يثرب له پاکې خاورې، جهانونه دواړه ځار شه
چي دلبر مي پکښې اوسي، سر مي ځار له هغه ښار شه
د جامي د کلام ځار شم، له انداز او سوچه والي
چي دارو مي پکښې شته دي، د وينا د کچه والي
خزانې دي د معنو دا، که شعرونه يې دي وېلي
مصطفٰیρ يې دی ستايلی، که ګوهر يې دي پېيلي
کتاب دواړه جهانونه، ديباچه ورته سردار دی
ټول عالم لکه مريان او، مصطفٰیρ د دوی بادار دی
د شراب مستئ يې شمارې، تر حد تيرې دي د عشق
ده يوه نامه تقليد هم، نامې ډېري دي د عشق
د بسطام* کامل تقليد کړو، خربوزه يې وه نه څکله
دا معلومه ورته نه وه، چي رسولρ څنګه خوړله
که عاشق يې نو کلکوالی، په تقليد کښې د يار ډېر کړه

* حضرت بايزيد بسطاميرح له ختکي خوړلو په دې وجه پرهيز کړی ؤ، چي هغه دا خبره معلومه نه کړای شوه، چي رسول الله ρ ختکی په کومه طريقه خوړلی ؤ، اقبالرح دې کامل تقليد ته عشق وايي.

ستا کمند دي داسي پوخ وي، چي يذدان پکښې را گېر کړه
په حرا کښې د خپل زړه خو، لږ په دډه شه نيت وکړه
له خپل ځان ځنې لږ تېر شه، د حق لور ته هجرت وکړه
ښه له حق ځنې محکم شه، د خودی په لوري ورشه
د هوس لات او عزٰی ته، لکه تندر ور پر سر شه
ته د عشق د لوی قوت نه، جوړ يې شاته لوی لښکر کړه
په فاران د عشق و خېژه، ځلېدونکې ځان په سر کړه
د کعبې خدای به و تاته، په لمانځه سره ځير کړي
او د "اني جاعل"، به اې مينه تا تفسير کړي

%%%

# خودي په سوال کمزورې کيږي

پر زمرو دي باجهې کړه، اې! چي وې له خراج وروړ
نيمگړتيا درباندي وکړه، چي په خوی شوې د لومبړو
پړوکې پړوکې رنځېدلی، چي يې ته کړې نيمگړتيا ده
ستا د رنځ او د دردونو، اصل جړه بس هم دا ده
نيمگړتيا د اوچت فکر، اوچتوالی په غلا ورل کړي

---

واذقال ربك للملٰئکة انی جاعل فی الارض خليفة، ژباړه: اې رسوله! ياد کړه چي ستا رب فرښتو ته وويل: "چي زه پر مځکه يو نائب مقرر کوونکی يم.

د پخو لوړو خیالونو، بله شمعه هم دا ګل کړي
وڅښنه ډك د نرۍ خم دی، چې و نه ګورې بل لور ته
هم د وخت د یو جګۍ نه، خپلې نغدي کړه را پورته
د عمر غوندي له اوښه*، پسې کوز شه چابك واخله
د غیرت خبره دا ده، احسان چري د بل ماخله
په کوڅه ـ کوڅه به غواړې، منصبونه تر څو پورې
دا دی خوی د ماشومانو، د نچې په اس چې سورې
یو هغه فطرت چې يې خېزي، له اسمانه نظر وړاندي
دی د بل احسان پر مځکه، راګوزار کړي سر د لاندي
غریب توب لویه خواري ده، دا په سوال نوره ډېرېږي
ګدا ګر چې څو ګدا کړي، له ډېروالې هم تیرېږي
د خودۍ نظام له سواله، تار په تار شي اې مینه!
او هم سوال يې تجلې کړي، د خودۍ د سینا ونه
د غوښتو په منډو تررو، بادومه خپلې خاورې
خپلې غوښې خوړل ښه دي، د سپوږمۍ غوندي که واورې
که دنیا شي په تا تنګه، ناچاري پر تا خوره شي
شرق د ژوند په کډه راشي، او نه پاتې څه اسره شي

* زمونږ دویم خلیفه حضرت عمرτ پر اوښ سپور ؤ، چابك يې تر کښته پرېوتو، دوی پخپله د اوښ له ښا ځخه ورکوز شو، چابك يې پورته کړاو د دې لږې خبرې دپاره يې هم بل چاته وینا مناسب ونه ګڼه او نه يې د احسان غړ پر سر واخیست.

روزي مه غواړه هیچرې، د چا موږ منعم له وره
دا چینه د اوبو نه ده، اوبه مه غواړه له لمره
هسي نه د نبيρ مخکښې، شرمنده صبا ولاړ يې
هسي نه په لويه ورځ بيا، منګل مرورې خپړ داړې
که سپوږمۍ ته روزي رسي، په اسمان د لمر له شکوره
دا احسان يې پر زړه داغ شو، څه پټ نه دی ورته ګوره
لوی همت له خدايه غواړه، د اسمان سره په جن-ګ شه
چي خوله ورانه په سوال نه کړې، د ملت مېړه د ننګ شه
د کعبې له پاکه کوره، چي اکښلې چا بتان دي
هغه ذات دي فرمايلي، "کسب ګر د خدای دوستان دي*"
د هغه په حال ژړا ده، چي د بل شکور يې پر سر دی
ملا کږه او څټ يې مات دی، چي د بل احسان پر غر دی
د بل لطف لکه تندر، خپله څټه يې کړه پر ورکه
د غيرت او عزت پنګه، يې خرڅه کړله په کونجکه
پر رحمت شه چي يې سوځي، په سور لمر کښې ينه سږي
خو له خضرهυ هم نه غواړي، يو کندول اوبه دا تږي
د غوښتو په شرمندګۍ يې، نه تندی اوبۀ اوبۀ شو
سړی ؤ سړی شو پاتې، لکه توري خاورې نه شو

* الکاسب حبيب الله. کسبګر د خدای پاك دوست دی. (حدیث)

د اسمان د لاندي هسي، ښکاره دغه بختور دي
لکه ویارِ او په لوړي کښې، یو سر هسکی صنوبر دي
که هر څو یې لاس شي لاندي، پورته لا خودي د ده شي
ملا ترړلی ویښ ولاړ وي، که نصیب د ده ویده شي
سمندر په سوال غښتلی، نېز د اور دی په کچکول کښې
د خپل لاس د پرخې څاڅکي، مرغلره ده په تول کښې
برېوکۍ غوندي تل اوسه، یاد د خپل غیرت له شوره
که په بحر کښې دي ژوند وي، هم کونډي ساته نسکوره

%%%

# خودي چي کله له عشق او محبت څخه ځني

مضبوطه شي نو دا د نړۍ ښکاره او پټ قوتونه را لاندي کړي

چي له ډېره محبته، شي خودي کلکه محکمه
نو قوت یې حکومت شي، د دنیا پر غره او سمه
انځورونه چي د ستورو، اسمان کښېښول د بدئینې؟
ده غوټۍ دي شوکولې، د خودۍ له ګوري وني
که لاسونه د بنده وي، دا قوت یې لاس د خدای کړي

بیا د ګوتې اشارت یې* ، د اسمان سپوږمۍ دوه ځای کړي
بیا هم دی تیږي اېښول کړي، او منصب د ټول جهان شي
که دارا وي که جمشېد وي، ټول یې لاندي د فرمان شي
بوعلي و قلندر ؤ، چې نامه یې په هند ښکاره ده
د هغه قصه خو واوره، د ګوهر ډکه کاره ده
په ګلزار د هندوستان کښې، په* چغار هغه بلبل ؤ
خلقې ورته غوږ غوږ وې، په صفت د ښایسته ګل ؤ
دا ټکړه مځکه هغه ده، چې پیدا ده له سوړ اوره
خو د ده د لمن باد دا، په دنیا جنت کړو ګوره
یوه ورځ د ده مرید ؤ، د بازار په لور په لار تلو
له شراب د بوعلي یې، نشه ختې وه سرشار تلو
را ښکاره د ښار حاکم شو، غاور سپور ؤ پر اس باندي
قهرژني زغلېدی، د چوب دارو وروستو وراندي
یو ورچیغه په مرید کړه، وې یې چي وای چي روان توندېي
د حاکم د سرو لار کښې، یې ولاړ لکه چي ړوند یې

* کله چي به د خدای خوښه شوه نو د وخت پیغمبر به داسي کار وکړ چي بل چا به نه شو کولای او کفار به عاجز شوو، داسي کار ته قرآن معجزه وایي، دوست د خدای محمدρ هم ډېري معجزې ښیلې دي، یوه دا هم ده چي سپوږمۍ ته یې پخپله ګوته اشاره وکړه، نو هغه پر منځ دوه نیمی شوه او ټولو خلګو ولیده خو ازلي کفارو بیا هم ووې: "چي جادوګر دی، جادو یې وکړ، دې شق القمر ته اقبال صاحب په دې شعر کښې اشاره کړې ده.

* د حضرت بو علی قلندررح دې شعر ته اشاره ده:

مرحبـــا ای بلبـل بـــاغِ کهـــن　　　　از گل رعنـا بگـو یـا مـا سـخن

په خپل فکر کښې درویش، ډوب تلو له ځانه بې خبر ؤ
سر یې زوړند ګرېوانه ته، له جهانه بې خبر ؤ
مست د کبر په نشه کښې، کوتك پورته کړو چوبدار
د درویش په سر یې مات کړو، غه ناترسه په ګزار
لاره خوشې شوه حاکم ته، فقیر خاورو کښې ریمن لاړ
په خفګان او زړه یې ډك ؤ، رن-ګ یې زیړ او مرغېژن لاړ
په دربار د بوعلي کښې، یې دا ناوړي وه ژړلې
تا به وېل چې پشکال دی، سترګې داسي ورېدلې
لکه تندر له اسمانه، ورخطا د غره په لور شو
شوه وینا یې د اور چله، بوعلي له قهره اور شو
له رګ رګ ځنې ختلې، تکې سرې لمبې د ده وې
د کاتب لور ته یې مخ کړو، په شعله ژبه یې ووې
قلم پورته په تلوار کړه، غوږ مي ونیسه فرمان ته
د فقیر د خولې خبرې، پر کاغذ وکښه سلطان ته
"ستا حاکم زما مرید ته، سر مات کړی په وهلو
سور انګار یې کړو راپور ته، په خپل ځان یې واچولو
دا ناکاره حاکم پوه کړه، سزا ورکړه وایم تا ته
ګني ستا سلطنت اخلم، وربخښمه یې بل چا ته"
خط د خدای د نازولي، تر سلطان و رسېدلو

ساه ترې وخته له وېرې، رپېدلو دګېدلو
باندې خپل غږې درانه شول، غږ د غم د ده پر سر شو
رن‌ګ يې و تښتېدو داسې، زېړی لمر د مازيګر شو
په ځنځير يې و تړلو، چې حاکم وه کړې زياته
بخښنې غوښتو ته لاړو، قلندر ته ننواته
وه خسرو شېرين زبانه! ، يو طوطي رنګين بيانه!
له ضميره د قدرت وه، د نغمو چينه يې روانه
په فطرت لکه سپوږمۍ ؤ، شوه خبره ده ته پاتې
پوره نه وه د بل چا نه، داسې ګرانه ننواتې
لاړ د ساز په بړغولو، هلته دی داسې راسر شو
چې يې زړه ورته نرۍ، کړو ژړغونی قلندر شو
په ښکاره خو د غرغوندې، د سلطان شان او شوکت ؤ
په دې پوه شو چې لوړ شان يې، د يوې نغمې قيمت ؤ
چرې زړه د دروېشانو، پام کوه چې آزار نه کړې
چې وريته د خپله ځته، پام کوه په انکار نه کړې

%%%

# دخودی نشتوالی

د انسان په نوغي کښې، د مريانو قامونو له خوا يوه نوې جوړه شوې خبره ده او په دې پټه طريقه د غالبو قامونو اخلاق پرې باسي۔

نرغونۍ يوه قيصه ده، اورېدلې په کښو کښې
وه د ګډو رمه پنډه، په پنډ غالي د ورشو کښې
ګيا ډېره وه زر زر به، د دوی نوغي لوئېدلو
نه يې وېره د دښمن وه، نه پرې چړې بلوسيدلو
د کنډک تقدير چي بد شو، بدې ورځ کړې سترګې ځيري
د بلا غشي پرې راغلل، کړې سينې يې د ټولو څيري
د زمرو غونډه پر راغله، د يو لوري د ځنګله
په ورشو د خوارو ګډو، زمرو وکړه د شپې هله
په اولجه* وهل ترل کښې، وي زمري د قوت لار ده
سوبه(2) يې ده لکه د وينځې، تل بری د قوت لار ده
زمري جاروه غړولو، چي مي زور شته شاهنشاه يم
آزادي د ګډو لاړه، هر ګډ سر کښېښو چي ستا يم
د زمري خوی ماتول دی، هسي نه چي يې پټنه وه
د بزو ګډو وينو سره کړه، که ورشو له رنګه شنه وه
يوه ډېره زړه ګډه، په رمه کښې وه هوشياره
دې ليدلې زمانې وې، تېره وه په هره لاره

---

* کلراج. (2) فتح.

د خپل قام په غم غمژنه، دغه نیا وه د اوریو
څر او څکه پر حرام شول، له ظلمونو د زمریو
د تقدیر ژړا یې وکړه، د ځان ویر خو هم په کار دی
بیا یې زړه کښې داسي ووې، چې تدبیر خو هم په کار دی
دا عادت دی د کمزوري، چې یې د سر ویره پیدا شي
بیا د عقل نه کار اخلي، تر حېلو خبره راشي
مصیبت په غلامۍ کښې، شي د عقل اس ته پونده
پس له هغه شي خبره، د تدبیر د قوت تونده
څنګه څنګه چې پخیږي، لېونتوب د انتقام
د پټنو د جوړولو، فکر کړي عقل غلام
زړه کښې یې چې دا به څه شي، نیا د ګډو ځان ته ژاړه
دا زموږ غمونه سیند دی، نه یې تل شته او نه غاړه
نه یو موږ د زمرو ساري، نه به شو په زور آزاد
دي زموږه سپینې لېڅې، د هغو لاس د فولاد
ده ناشونې په وعظونو، څۀ که زړه د زمري ورکړم
په وینا به خواره ګډه، اخیر څنګه شېر ببر کړم
په حکمت دا د کېدو ده، چې د ګډې غوندي شېر شي
که چلونه ورته جوړ کړم، شته امکان چې ځان ترې هېر شي
د بزرګۍ دعوه یې وکړه، شه واعظه د خبرو

بوډۍ کېده ځای ته لاړه، د شېرانو پنجورو
وېل رښتیا نه دروغ* وايي، او لوئیمارو نه کړو هیرېږي
بده ورځ نه بدل لېدونکې، د هغې نه وه ویرېږي
خدای راکړی په خپل فضل، روحاني قوت دی غوره
شرمښانو هم زمرو نه، یم راغلې پیغمبره
هغه سترګې چي رندې دي، زه هغو وته نور راغلم
پاك الله یم رالېږلې، او سره د دستور راغلم
له دنیا خو اخیر ت‌ك دی، توبه کړئ له بدو چارو
څه توښه د اخیر بویه، مه ځئ نور پر ورانو لارو
هر چه توند او زورور وي، دی بدبخت بللی ځکه
ژوند به چرې محکم نه شي، څو خودي نه کړي څوك ورکه
له وښو خوراك موندل دي، د نېکانو د روح نخښې
خدای ته هغه څوك نژدې دی، کوم چي نه خوري واز کې غوښې
در په سر بد ناموسي کړه، ستاسو پنجو تېرو دارو
د ادراك سترګې رندې کړې، دا نظر یوسي له دوارو
د کمزور ډنګر% دپاره، بس جوړ کړی خدای جنت دی
د تاوان سبب هم دا شي، چي د چا سره قوت دی

---

* د سورۀ قمر پنځویشتم آیت او نولسم آیت "کذاب اشر" "نحس مستمر" ته اشاره ده. % ضعیف.

ورک عظمت او هم سطوت شه، په لټون کښې يې پټ شردی
هی توبه له امیرتوبه، چې ناچار ژوندون تر غور دی
تندر دې ته غلی نه دی، چې ایله په دانه راشي
چې رشه شي یا خره شي، باندي تندر ور خطا شي
که هوښیار يې صحرا نه شي، په ذره کړه ځان حساب ته
چې تل اخلي رڼاګانې، له انوارو د افتاب ته
چې پر ګډه کړې ته ما ته، څه لوېي په دې طاقت
ځان کړه ذبحه ده میړانې، که مقصود دي وي عزت
د ژوندون مانۍ کچه کړي، رده يې کني شا مدام
ښه څیز نه دی خبر قهر، زور زیاتی او انتقام
نه به شنه ؤ د پښو لاندي، نه به بیا بیا ټوکېدل دوی
نه به تل د مرګ له خوبه، خپل لېمه بیا بیا وینځل دوی
عقل دا دی اې زمریه! ، چې خپل ځان کړه اډو هېر بس
لېونی دی لېونی دی، چې له ځانه نه شي تېر بس
سترګې پټې غوږ کانه کړه، شونډې جختې هر چه کیږي
ګوره بیا چې ستا اسمان ته، فکر خیږي که نه خیږي
د دنیا په دې ورشو کښې، هیڅ هم نه شته دلته څه دي
مه تېر وځه که څه دي هم، هسي وایه چې څه نه دي
زمری ناست ؤ له سخت ژوند، او له میړانې ځنې ستړی

تن ساتنه يې ارمان ؤ، د مو زړونه ؤ تر وړی
نصيحت که الله هو وه، هر زمری له دنيا موړ شو
تېر يې وه خوړوله کډې، هغه تود ژوندون يې سوړ شو
های د کډو ماتوونکي، شنه زمري ساده او سپين شول
شل اوکډه رانده کانه شول، سر د کډو بزو په دين شول
زمري کښېناستل وښو ته، تر دې حده يې بې خوندي شو
زمريتوب شو ځنې پاتې، مرغلره مات کودی شو
له غاښونو يې تېره والې، د وښو په خوراك لاړو
له سرو سترګو هيبتناکو، يې هغه رن-ګ ادو پاك لاړو
په ورو ورو وه دورېدلو، زړه يې لاړو د سينې نه
اول تته بيا رنده شوه، جوهر لاړو د آئينې نه
د کامل کوشش په دوی، کښې لېونتوب وه نه شو پاتې
د عمل جوشونه يې ورك شول، زړونه يې خوني شوې ميړلې
هغه عزم اقتدار او، استقلال د زمرو لاړو
که عزت که اعتبار ؤ، که اقبال د زمرو لاړو
هغه پنجې د فولادو، بس تارونه شول اومړي
شول تنونه يې قبرونه، ساره زړونه پکښې مړي
چې د تن قوت يې کم شو، د سر ويره يې شوله ډېره
د همت پنګه ترې يووړه، چې ترې ويره شوه چاپېره

چې همت ورځنې لاړو، راپیدا شول سل رنځونه
بد فطرت بې لاسو پښوشول، هم ختلي د دوی زړونه
ویښ زمري د ګډي سحر بس، ویده لکه بې سای کړل
په تهذیب یې و بللو، چې خپل تن او روح یې بای کړل

%%%

# د مسلمانو قامونو په تصوف

اوادیبانو باندې دیونان د افلاطون د افکارو ډېر اثر شوی دی او دګډو په لاررروان دي، باید چې د هغه له مخیلاتو ځانونه وساتي۔

افلاطون یو زوړ راهب ؤ، فلسفې تې کښېښوې جړې
بوډا ګډ د زوړ کنډک ؤ، وې ښکرونو یې کړې درې
داسي يې اس په ترپ سیلۍ شو، د دنیا په غرونو شاړو
په تیاره د فلسفه کښې، اډو ورک شو چرته لاړو
او جادو د نامحسوس یې، په سر داسي دی سور کړی
چې دی لاس که غوږ که سترګې، کړو یې ښې يې هر یو غړی
ده ووې چې د ژوند راز شته، په مرګې کښې يې میندل شي
هغه شمعه بلېدونکې، سل جلوې مومي چې ګل شي
دې زموږه په خیالونو، باچهي کوي باچا دی

د ده جام ويده کونکی، لري کړونکي له دنيا دی
د ګډانو د رمې ګډ، په لمروڼ* کښې د انسان دی
د صوفي زړه که دنيا ده، پکښې ناست دا حکمران دی
تر اسمانه و ختلو، چي ده عقل کړو وزرې
د اسبابو دې دنيا ته، ووې ده خوشي خبرې
د ژوندون جزونه وړه ده، ګډ وډ خاورې ايرې کړل
د دې ګنې ګوري ونې، ټول ښاخونه ده راپرې کړل
زيان ته سود افلاطون ووې، د خپل فکر نه جهت
هر يو شته ته يې نشت ووې، ايله دغه يې ؤ حکمت
هم يې خپل فطرت ويده ؤ، هم يې خوب نرۍ کښې ډېر کړو
بس د ده د پوهې سترګو، را پيدا ايله او بتېر* کړو
د عمل له سمې لارې، نااشنا روان ؤ کوږ
دی مين په هغه څيز شو، چي شربت ؤ او نه پوړ
دی موجوړ عالم ته ورکړ،و بس د وهم حيثيت ده
کوم اعيان% چي حاضر نه دي، و شمارل په حقيقت ده
په ژوندون کښې خو ژوندون ته، د امکان عالم دی غوره

---

* لباس.
* سراب. % افلاطون د اعيان نظريه پېښ کړې وه، دا هغې ته اشاره ده، چي افلاطون دی موجود دی، دنيا نو دې ميلسې ته هسې يو وهم ووې چي ګني هيڅ هم نشته، او دا يو عکس دی، د هغه اعيانو کوم چي په عالمِ مثال کښې دي، اقبال وايي: "چي ارسطو د افلاطون په دې نظريه ډېر ښه تنقيد کړی دی، خو افسوس دی، چي دلته د دې اوږدې مسئلې خبره خلاصېدای نه شي.

چې په ژوند مړه دي، هغو ته دا عیان عالم دی غوره
د هغه هوسۍ وته موند، د ترپللو چړې خوند
د هغه زرکې وه نه موند، په ټول تللو چړې خوند
پرخه یې داسي ده ب-ې زوره، ښورېدای نه شي له ځایه
ساه یې نشته په سینه کښې، د مارغه یې هیڅ مه وایه
د هغه یوه دانه کښې، نشته شوق د ټوکېدلو
هم پتنګ یې بې خبر دی، له مزو د سوځېدلو
دا راهب په تېښته لاړو، بله هیڅ ترې نه شوه جوړه
د جهان تودې میلې کړو، وار خطا له هغه سوړه
دې د تاؤ په تمه کښېناست، د سرې لښې په خوا کښې
ده دنیا د افیمیانو، کړله جوړه په دنیا کښې
چې د ځالې ځنې والوت، تر اسمانه لاړو پورته
ولې بیا نه شو راستون دی، نه راکوز د ځالې لور ته
لرغونی د فلک خم دی، پکښې ورک فکر د ده شو
ریشتلی شو او که خښته، خدای خبر په خم کښې څه شو
ده قامونو د دنیا ته، د خپل فکر زهر ورکړل
د عمل مینه ترې لاړه، بس ویده یې پر بستر کړل

%%%

# د شعر حقیقت او د اسلامي ادبیاتو اصلاح

د انسان وینه توده ده، تل له داغ د آرزوګانو
دا د خاورو کندو روڼ دی، له څراغ د آرزوګانو
د ژوند جام ته سره شراب دي، تمنا وراچولي
هر څه۔ هر څه په نشه کښې، توند په وراندي ځکه زغلي
په کتاب د ژوندانه کښې، یو مضمون دی د تسخیر بس
تمنا چي ورته وایي، دا افسون دی د تسخیر بس
دا ژوندون لکه ښکاري دی، تمنا یې لکه دام دی
چي یې لیږي د حسن لور ته، تمنا د عشق پیغام دی
ساه په ساه دا ارمانونه، چي د کومې خوا نه راشي؟
زیر او بم د ژوند په بړغ کښې، چي له کومي را پیدا شي؟
هر یو څیز چي خوندور دی، ډېر ښایسته دی په جهان کښې
دی زموږه لار ښیونکی، د طلب په بیابان کښې
چي ښایسته يې‌يې په کوم زړه کښې، ښه پوخ وه لګي انځور شي
آرزوګانې پکښې زیږي، هغه زړه یو آباد کور شي
د آرزو پسرلی به نه وه، خو ښایست پیدا کړو ځویه!
هم جلوه ده د ښایست چي، د آرزو ده ساتندویه
د شاعر سینه که ګورې، د ښایست د رڼا کور دی

له سینا څنې يې راخيژي، د ښایست د رڼا زور دی
د هغه نظر دی داسي، چي هر ښه له ښه هم ښه کړي
فطرت خوږ کړي له خوږو هم، د هغه جادو څه نه کړي
بلبلانو دي زده کړي، له شاعره ژړاګانې
اننګو د ګلو يې موندي، له رنګونو رڼاګانې
سوځېدنی د شاعر دی، دا په زړه کښې د پتنګ هم
د شاعر له برکته، دی د عشق د قصو رن-ګ هم
د لوندې وچې لوئيوالی، د ده خټه کښې پنهان دی
د ده زړه کښې نوی نوی، په جهان پسې جهان دی
په دماغ کښې يې رېدي شته، چي لا نه دي ټوکېدلي
فریادونه او نغمې هم، چي لا نه دي اورېدلي
په خپل فکر رسېدونکی، ناست په ګرده کښې د ستورو
دی د ښو پیدا کوونکی، نااشنا له بدو تورو
د دې خضر په تور تم کښې، د حیات اوبه پرتې دي
اوبه خور د ژوند د باغ کړي، چي د ده سترګې چينې دي
موږه یو سترې ستومان،ه ساه ختلي پښې مو ماتې
تر منزله پوري موږ ته، لا ده دېره لاره پاتې
د شاعر چوڼی ◻ چغيږي، وايي دې خوږې سندرې

---

◻ بلبل

چې په موږ کښې جوش پيدا کړي، لنډ کړي سر د لارې لړې
چې جنت د ژوندانه ته، موږه راکاږي په منډه
چې د ژوند لينده په مثل، د پوره سپوږمۍ کړي غونډه
قافلې دي چې چليږي، د شاعر جرس بړغيږي
مخ په وړاندي وړپسې دی، بړغ د سوي شپېلۍ خيږي
چې زموږ په ګلستان کښې، ؤ د ده نسيم الوت کړی
په ريدي ګلاب کښې ګډ شي، په نرمۍ چمن جنت کړي
د هغه فريب دی داسي، چې تر ژوند کلك هم ډېريږي
هم د ځان سره حساب کړي، هم په منډو ځي تيريږي
شاعر خپل دسترخوان وير کړي، رابلل د ټول جهان کړي
خپل اورونه و هر چاته، پس د باد غوندي ارزان کړي
وير د هغه قام په حال دی، چې يې مرګ وي برخه نغښتې
چې شاعر يې وي بې خونده، له ميدانه د ژوند تښتې
بد هم ښه ور پکښې ښکاري، څه بې وايي د هينداري
خوږ کلام يې سل نشتره، ځيګر يوسي څېري ګاري
تازه والی ځنې يوسي، ښکلوي که مخ د ګلو
د الوت مينه کړي ورکه، نه زړګيو د بلبلو
ستا مستوالی د پلووچو، د هغه له بد افيون دی
د ژوندون دا درنه پنګه، وړې قيمت يې د مضمون دی

په چمن کښې دی د سرو، د ښایست نه پرېږدي ترې
ساه يې داسې ده يې سوزه، له شاهين جوړ کړي تنزرې
له سينې په کښته کب دی، او انسان دی بر تر سره
لکه وي ابنات البحر[*]، ځنې شته دی د سر ويره
په خوږو۔ خوږو سندرو، دا مهی مانګی ويده کړي
په خطا مخه يې بوځي، او بېړۍ ډوبه د ده کړي
ستا د زړه قوت په غلا وړي، او نغمې ته ي-ې خوند واېي
دا هم سحر د شاعر دی، ته چې مرګ　وته ژوند واېي
ستا د زړه له ښتې وينزي، د ژوندون د خواهش رنګه
په پوهيږې چې شاعر وړي، سره لعلونه ستا له درنګه
هر يو سود لکه د زيان کړي، تا او ما ته چې ناره کړي
په دنيا کښې چې څه ښه دي، لکه بد يې را ښکاره کړي
د فکرونو په درياب کښې، غوپه درکړي تا فنا کړي
د عمل له قوتونو، تا پړسمن او نااشنا کړي
هم په خپله هغه سترې، موږه يې هم وينا کړو سترې
د شاعر د جام له دوره، د محفل ژوندي شول مړي

* بنات البحر" په سمندر دریاب کښې درې شاپیرۍ یادیږي په انګریزي کښې ورته سائرنس (Syrns) وایي د مانګانو داو هم دی، چې د دې شاپیرو د وجود کښته برخه د ماهي یعني کب غوندي ده او پورته سینه او سر یې د انسان غوندي دی، د دې شاپیرو په سمندر و مانګي پسې سول شي، لار خطا کړي او بیړۍ ډوبه شي. د یونان په علم الاضمام کښې دا نکر راځي، نو اقبال صاحب د بې مقصده شاعرۍ شاعر ته هم بنات البحر ویلی دی. % سیراب.

برېښ د تندر پکښې نه شته، د هغه داسي باران دی
یو اوبتیر٪ د بوی اورنګ دی، د هغه داسي بوستان دی
د هغه ښایست دی لري، له رښتیاـ رښتیا خبرو
په دریاب کښې نور څه نه شته، بې چیغو مرغلرو
څه يې د وېښې نه خوب ښه کړو، قراري يې غور له شور کړو
د هغه سړو ساګانو، مړ زموږه تک سور اور کړو
زړه ته زهر خونړي دي، دا يې بڼ د بلبل نه دی
د هغه ګلالۍ وینې، تور سهار پکښې ویده دی
خم کوزه که يې پیاله ده، ځان ساته ورځنې شابه
که رانه ښکاري هم تښته، د شاعر له دې شرابه
اې چي ته يې کړې بې خوده، د شراب يې دا اثر دی
د هغه په کوزه کې کښې، ستا د توري شپې سحر دی
په نغمو يې هدیره کړه، ستا د زړه دنیا ده غلې
قاتل زهر دي ستا نس ته، د غوږونو په لار تللې
اې سبب د تنزل دی، درته وایم ستا انداز
دي تارونه يې شلېدلي، ترنګ دي نه خیژي له ساز
پرسمنتوب داسي بېکار کړې، چي ته هغه نه يې نور يې
په دنیا کښې خو اوسیږې، د اسلام په لمن تور يې
پر ترلی شې بې وسه، د ګل رګ درته ځنځیر دی

د سحر وږمه دغس کړي، درته توره تسا ترې وير دی
تور د عشق په لمن پاکه، پوري شو ستا له فرياده
تا د عشق تصوير خراب کړو، څه دي وکړل اې بهزاده
ستا ازار ورته ګونه کړه، تکه زېړه رن-ګ يې سپور دی
ستا سوروالی دومره ډېر ؤ، چي مړ کړی يې د عشق اور دی
ستا له ډېره سترې توبه، پړوکي پړوکي پروت دی سترې
ستا له ډېرو ناتوانيو، هغه هم دی لکه مړی
په پياله کښې د شاعر خو، ژړاګانې د واړه دي
او د کور کالي يې لوخړې، اسويلي ساړهـ ساړه دي
سرخوش توب له ميخانو دی، په غښتلي ګوټ پيدا کړي
د پردو خونو، کړکو کښې، د ختلي رڼا غلا کړي
رنځور غاړی مړغيژن او، تربت سر يې زوړند کښته
د غريب نه ساه وخيزي، د دربان په يوه لته
وچ لرګی لکه شپېلۍ شو، رنځېدلی غم زپلی
د آسمان ځنې ګيلې کړي، سر په چيغو نه شو غلی
خوشامنده او کينه يې، بس جوهر دی د هينداري[1]
ناتواني خوږه مينه، لرغونی يې ملا د لاري
ډېر بدبخت او خوار او لاندي، زړه ختلی ياد په مات شو

---

(1) آئینه.

يو نامراد او نااميده، د حجرې نه د جومات شو
وير ژړا د شاعر يووړه، وه چي ستا سره په پنګه
په مالت کښې يې خوب حرام کړو، که هر څو نه وه دا رنګه
هاى په حال د هغه عشق دی، چي يې لمبه لاړه سرړه شوه
دا راسره شوه په کعبه کښې، بت خانه کښې راغله مړه شوه
اې شاعره! که څه نغدي، د ويناوو ستا سره دي
د ژوندون پر نوك يې کښېږده، چي کوټه او که کره دي
ښيي لار د فکر شمع، د عمل په مخکښې زغلي
لکه تندر ته په وړاندي، برېښېدني تاليدلي
دي بايده چي صالح فکر، شي پيدا ستا په ادب کښې
په ستنه زغله تش لوښی، چي ستا خم دی په عرب کښې
بيا* عربي معشوقې ته، زړه ريبار کړه چي پخلا شي
چي د کرد□ له تور ماښامه، د حجاز سحر پيدا شي

* اقبال سلمي ويلي دی، د عربو په ادب کښې معشوقي ته سلمي ويلای شي، مقصد دی چي ادب دي اسلامي وي.

□ کرد د قبيلې نوم دی، د شېخ حسام الحق ضياء الدين کردي د خولې مقوله ده: "امسيت کرديا اصبحت عربيا" يعني ماښام کردی وم او سحر عربی وم، وايي چي د دين د طالبانو په يو ټولګي وراغلو، ورته يې سوال وکړو چي ما ته هم د باطني اسرارونو علم راکړئ، هغوی ورته په سخته ژبه ووې: "چي پخپله پښه کښې پړی واچوه، سر په کښته ټوله شپه ځان زوړند کړه، او دا ټکی وايه: "څه ټکي يې ورته وښيل" نو د زړه سترګي به دي وه شي، باطني اسرارو نه به در ښکاره شي، طالبانو خو دی و رټلو، چي لرې شي او زموږ وخت خراب نه شي، ولي شېخ هم هغه شان وکړل نو الله پاك د ده د ايمان مضبوطتيا او د ډېر اخلاص د کبله په رښتيا د زړه سترګي ورکړې، او لوی ولي د کرامت عزت څښتن شو. والله اعلم.

د عجم د باغ ګلونه، ټول کړل تا ډکې څولۍ تا
هم د هند ایران لیدلي، د سپرلیو ګل دلۍ تا
د شګلوړي بېدیا تاؤ ته، لږه بیا کړه څټه کلکه
د خورما زاړه شراب خو، یو څو څاڅکي کړه بیا څکه
د عرب صحرا که بټ دی، ته يې په غېږه کښې سر کښېږده
که تود باد دی در نه تاو شي، دغه تن دي پکښې پرېږده
تا پېرې دي اړولې، په نمروړ[*] رېښمین پستو کښې
راشه اوس يې ته عادت کړه، د خامتار په تنستو کښې
د رېډیو په تلګو کښې، کوي بنګړي له مودو راسي
د شبنم په فوارې تل، لکه ګل لانبي چې پاڅي
د تودو شګو صحرا ده، لږ خوې کښېنه په سینه کښې
ته یوه غوپه خو وخوره، په زمزم غوندي چینه کښې
لکه چوڼې به څو ژاړې، د ګل خوا کښې ناخوشحاله
په دې هسي باغیچو کښې، به تر څو ولړې ځاله
دې هما عزت موندلی، ستا د دام له برکته
ورځه خپله ځاله کښېږده، د دنګ غر پر سر اوچته
زول، بړلۍ، تندر په تخر کښې، داسي ځاله کړه ته سازه

* لباس.

چي بې شانه وي اوچته، له کنام[*] د کته بازه
دا ژوندون د جنګ میدان دی، چي ته هم د جنګ جوګه شې
چي د ژوند اور ته ورټوپ کړې، روح او تن پکښې لمبه شي

# د خودئ د پاللو درې مرحلې دي

## اوله مرحله اطاعت

د اوښ ژوند دی په څو ډوله، ډېر خدمت او ډېر محنت کړي
ملا تړلی صبرناک دی، که ډېر درونډ وي بار اوچت کړي
چي په لاره کوي تګ دی، اورېدې پښې خو کم آواز وي
د کاروان پېټی کړي پورته، په صحرا روان جهاز وي
د ځنګل ځنګل نصیب دی، د ده پل وربانديي تېر شي
خوب يې لږ خوراک يې لږ دی، خو محنت يې له حد ډېر شي
مست روان وي په مخ تګ کړي، کجاوه پر زانګي پورته
د لار خوند اخلي او درومي، په ګډا د منزل لور ته
د خپل تګ له کیفیته، مستي اخلي نوره نوره
دی په صبر کړو کښې زیات وي، په سفر کښې له خپل سوره
که ته هم يې خونده نه شې، د خپل فرض بار اوچت کړې

* باز جاله نه جوړوي، د وچو غرونو په څوکو کښې د تېرو خوا ته ځای خوښ کړي، ډېر اوچت، ډېر پټ او دغه ځای ته "کنام" وايي.

دا جنت* د ملیز عیش به، ځان ته جوړ کړې چې همت کړې
اطاعت له غاړه کښېږده، اې غافله! ځان خبر کړه
که اختیار□ ته دې زړه کيږي، نو د جبر غر پر سر کړه
اطاعت له تورو خاورو، جوړه کاندې مرغلره
سره لمبه که شي سرکښه، نو خس هم دی له دې غوره
چې د ستورو د تسخیر ځوک، و آسمان ته تکل وکړي
د یو دود د ځنځیر غم هم، خپل پښو ته اول وکړي
باد چې بند شي په زندان کښې، ځو خوشبو یه ګل شي ګوره
خوشبویي چې قبول کړي، د هوسۍ نافه شي ورورره
دا کاروان د ستورو پورته، د منزل په لور سفر کړي
د یو دود د یو قانون دوی، اطاعت په سترګو سر کړي
شنه په دین د تو کیدلو، چې ځان کلک کړي نو سمسور شي
که له دغه دین نه واوړي، نو په پښو کښې خاورې سپور شي
دا تل سوی او په زړه داغ هم، ریدي وموند له خپله دینه

* اقبال صاحب په مصرع کښې "عنده حسن المآب" ویلي دي، دا د قرآن شریف د سورة "آل عمران" څورلسم آیت ته اشاره ده، الله پاك فرمایلي دي چې: د خلګو په زړونو کښې د ښځو لونړو زامنو او د سرو سپینو د انبارونو محبت دی، د ښو ښو آسانو څاروو او پولو پټو خواهشونه پکښې پراته دي، دا څېزونه د دې دنیا د ژوندون متاع اسباب دي او (ښه دي خو) د هغه دنیا راتلونکی ژوندون چې ډېر خوږ بهترین دی، له خدای پاك سره دی.

□ په اسلامي الٰهیات کښې د جبر او اختیار مسئله ډېر شهرت لري، په دې شعر کښې هغه لورته اشاره ده، مطلب دا دی، چې بنده ښه اوچت اعلٰی رښتونی حریت پس له هغه مونډای شي، چې د یو حکمونو ته غاړه کښېږدي، د دوست د خدایρ د ارشاد مطابق د مسلمان ژوند په کار دی، انسان نه خو کاملا مختیار دی، او نه مجبور دی.

دې قانون يې زغلولی، په رګونو کښې ده وينه
د ګلون په قانون ګل شي، خواره څاڅکي وي دريا شي
هم له دغه يوه دوده، ذرې يو ځای شي صحرا شي
هر يوه څيز چې قوي وينې، يو آئين لري دننه
د قوت له دې سامانه، غافل مه شې اې مينه!
اې له زوره دستور آزاده، راشه ځان په دين کښې بند کړه
دا د سپينو ځنځير واخله، خپلو پښو ته يې بيا خوند کړه
د قانون سختو ته زغم کړه، مه ګيله کوه مه غم ته
له حدونو د رسولρ چې، بهر نه کړې يو قدم ته

# دويمه مرحلهنفس قابو کول

که پوهيږې ستا دا نفس، لکه اوښ دی ځان ساتونکی
ځان منونکی په ځان سور او، چې زړه يې غواړي کړي کوونکی
مهار ونيسه راکښلی، لکه نر مېړه زړور شه
که تيکرکی يې د خاورې، په مړدی لکه ګوهر شه
خپلواکتوب که څه جوړ نه کړو، د خپل ځان په دنيا باندې
لکه خاورې به تل پروت وې، سر د بل د پښو د لاندې
ستا صورت چې يې له خټې، د ازل په ورځ ترلو
مينه ويره يې کړه ورګډه، چې قدرت خمير لړلو

پکښې ویره د دنیا وه، د عقبیٰ وه د خپل ځان وه
له هزار مصیبتونو، ویره مځکې د اسمان وه
د مال مینه د ال مینه، پکښې مینه د وطن هم
د خپلوانو هم د ښځې، پکښې مینه د مین هم
دا د خاورې اوبو ختّه، تن پروره ځان آسانه
په ناکاره چارو بوخت وي، لري اوسي د حیا نه
که امصار لااله تل وي، په لاس کښې تا نیولې
د هر خوف جادو به مات کړې، ته په یوه کوټک وهلې
هغه تن چې حق د ننه، لکه ساه پکښې غړېږي
د باطل په پښو کښې چرې، د هغه سر نه خړېږي
چې دننه ویره ورشي، په سینه کښې یې نه وي لاره
نه وېرېږي د هیڅ چا نه، بې د یو پروردګاره
هغه څوک چې له ښه مرغه*، په هیواد(2) د لا اباد شي
یو د ښځې د اولاد څه، له هر غم ځنې ازاد شي
ازادي هم داسي ښایي، چې بې خدایه هر څه پرېږدي
په یوه(3) اشاره ځوی ته، چړوکی په مری کښېږدي
که هر څو هغه یو سر وي، خو قوت یې د لښکر وي

---

* خوش قسمتي. (2) وطن. (3) د حضرت ابراهیمρ بې مثاله قربانۍ ته اشاره ده. (4) ان الصلٰوة تنهٰی عن الفحشاء والمنکر. په تحقیق لمونځ له بې حیاتوب او بدو چارو ځنې منع کوونکی دی.

دا په دې چې د سر بیه، یې له باد که تر نظر وي
لاالٰه لکه سپې ده، لمونځ ګوهر دی په ښه کور کښې
مسلمان زړه ته خو لمونځ، اصغر حج دی په ده کور کښې
لمونځ په لاس د مسلمان کښې، په مثال تېره خنجر دی
له بدي(4) بې حیاتو به، یې غورزولی په دې سر دی
تور لښکر د لوږو تندو، د روژې قوت وهلی
هم خیبر د تن ساتلو، شي د دې په زور ګټلی
حج فطرت د مومنانو، لا کړي روڼ او ځلېدونکی
د هجرت دی لار ښیونکی، د وطن دی سوزوونکی
دا یو داسي اطاعت دی، چې دولت د جمعیت دی
شیرازه غوندي د پاڼو، و کتاب ته د ملت دی
ورکوي د زرو مینه، دا مقصد دی د زکات
کوز او بر کړي سره ساري، را پیدا کړي مساوات
حتی تنفقوا[*] ته لا نور، ډېروي د زړګي زور ستا
کموي مینه د زور سره، او سپین زیاتوي نور ستا
دا دي وړه سامانو ته، مضبوطتیا و ستا پر کاندي
ته به هله یې مضبوط چې، د اسلام جرې وي تاندي

* لن تنالو البر حتٰی تنفقوا مما تحبون. تر څو چې هغه څېزونه د خدای په لار کښې ور نه کړئ، کوم چې تاسو ته ډېر خواږه دي. تر هغو به نېکي وه نه مومئ.

"یاقوي" تل وظیفه کړه، چې څښتن د قوت زور شې
تر هغه چې د دې خاورې، په دې اوښ باندې ور سور شې

%%%

## دریمه مرحله د خدای نائب توب

که دې زده کړو اوښ‌په توب نو، به ته واخلې له جهان باج
ستا پر سر باندې به خوند کړي، ښایسته د سلیمان تاج
تل به ته جهان ښایسته یې، چې تر څو آباد جهان وي
شې تاجدار د داسې ملك به، چې به تل په امن امان وي
په دنیا د خدای نائب شه، دا رښتونې ښاد منځ دې
عناصر باندې غالب شه، دا رښتونې ښادمنځ دې
دا دنیا د خاورو تن دی، او د خدای نائب یې ساه ده
دی د اسم اعظم سیوری، داسې ساه نه چې هوا ده
ټول د جز او کل رمزونه، چې څه دې دی ترې خبر وي
د خدای امر کړي دنیا ته، په دې زور د بر نه بر وي
که په دې ویره نړۍ کښې، ده جونګړه واچوله
د رب او ډیلې کړي تر ایسي، مځکه واړوي په بله
زره یې غواړي چې ښکاره شي، ده راوړی فطرت موړ

نوي نوي ارمانونه، دی کړي نوی جهان جوړ
یو د جز او کل جهان څه، له دې مځکې تر آسمانه
زرغونه یې د خیال چمن کړي، لکه ګل هزار جهانه
هر کنډو د اومو خاورو، پوخ او کلك په یوه دم کړي
کاڼي خاورې کړي ترې لري، له بتانو پاك حرم کړي
شابازتوب د ده کړي پورته، سوی بڼغ د زړه له تاره
د ده خوب وي او که ویښه، دواړه یې وي د خدای دپاره
د ځوانۍ سره روان کړي، بوډاوالی خنګ پر څنګ دی
هرڅه هرڅه ته ښه ورکړي، په کمال د ځوانۍ رنګ دی
د انسان نوغي ته زېږی، او هم دی شي ویروونکی
هم سپاهي هم سپاهګر، او هم امیر شي برروونکی
مدعا په دې دنیا کښې، دی د "علم الاسمآء*" دی
او هم راز په دې نړۍ د، "سبحان الذي اسرٰی□" دی
روښان□ لاس د ده محکم دی، چې یې امصا پر ونیوله
و کامل قدرت او علم، یې سره نښتی دي وبله

* و علم آدم الاسماء کلها ثم عرضهم علی الملٰئکة الخ. او خدای پاك آدمρ ته د هرڅه نومونه وښیل او بیا یې فرښتو ته هغه څیزونه پېش کړل.

□ سبحٰن الذی اسرٰی بعبده لیلاً من المسجد الحرام الی المسجد الاقصی الذی بٰرکنا حوله لنریه من اٰیٰتنا انه هو السمیع البصیر. پاك دی هغه ذات، کوم چې شپه په شپه محمدρ خپل بنده مسجدالحرام نه تر مسجد اقصٰی بوتلو، د کوم خوا او شا چې موږ برکتناك کړی دی، غرض دا ؤ، چې موږ هغه ته د خپل قدرت نښانې وښیو، بېشك هغه اورېدونکی او لیدونکی دی.

□ د موسٰیρ قیصې ته اشاره ده. % قیزي.

شهسوار نائب چي واخلي، په خپل لاس کښې د وخت ولیۍ%
خشمناك شي د ده لاندي، دغه اس په ترپو وینې
له هیبته* کې خبر شې، نو وچ کړس دریاب د نیل کړي
د فرعون له قیده خلاص دی، و اولاد د اسرائیل کړي
د هغه په یوه "پاڅه" د تن ګور مړی روح پاڅي
لکه ونه د چمن یې، په یو بړغ زنې روح پاڅي
حقیقت د دی عالم ته، ده توجیه د نائب ذات
د بزرګۍ له برکته، یې عام وموندو نجات
د هغه سیوری دی داسي، ذره لمر سره اشنا کړي
هغه دومره درنه څته، چي د ژوند قیمت سوا کړي
هدیرې ته یې عمل بړغ شي، را ویښ مړي په اعجاز کړي
د عمل په طریقو کښې، را پیدا نوی انداز کړي
چي یې چرته وي مخاسته[1]، نو رڼا ورځنې خیژي
څومره څومره موسیٰ ګان یې، په سینا پسې کرېږي
د ژوندون کتاب را واخلي، دی یې وکړي تفسیر نوی
دی زاړه خوب لره وکړي، معنیٰ نوې تعبیر نوی

---

* بني اسرائیل د فرعون غلامان وو، ډېر ظلمونه به یې کول، موسیٰυ دا خپل قام روان کړو، مخکښې دریاب ؤ، شا ته د فرعون لښکر ؤ، ده د خدای په حکم خپله امصا په دریاب کښې واچوله په دریاب کښې لارې جوړې شوې، موسیٰυ سره د قامه پوري وتل، د فرعون لښکر ورپسې هم په سیند ورننوتل اوبه پر راغلې ټول ډوب شوو. اقبال وایي: "چي څوك د خدای نائب شي، د هغه دومره قوت نصیب شي.

(1) نقشِ پا.

دا نائب د ژوند په تل کښې، يوه پټه خزانه ده
د ژوندون د ساز په تار کښې، ناوريدلې ترانه ده
دا تخليق  په لوی مضمون چې، فطرت زړه د وينو خوړ کړي
نو ايله چرته دوه بيته، د نائب د ذات را لړ کړي
له آسمانه پاس ختونکی، ؤ زموږ د خاورې زور دی
چې په دې دوره کښې زغلي، د وخت دغه چابک سور دی
د دې نن په ايره خول کښې، و زموږ پرته ويده ده
څه زموږ د صباح ورځې، نرۍ سوځه سره لمبه ده
د يوې غوټۍ لمن کښې، دي زموږ سل ګلستانه
د صباح د سحر څريکو، زموږ سترګې کړي روښانه
د دوران د نيلي سپوره، انتظار کښې ناست يو راشه
د دنيا د سترګو توره، ستا په لار کښې ناست يو راشه
د جهان دې هنګامې ته، رونق راشه بيا آباد کړه
د ميشتنې په نيت راشه، سوړ د سترګو دا هيواد کړه
د قامونو شور کړه غلی، د ښادۍ غوندې پرې راشه
په غوږ غوږ کښې جنت جوړ کړه، په سندرو لکه ورا شه
پاڅه ورکړه جوړوونکی، يو قانون د اخوت بيا

---

 داسي ترجمه هم وشوه.
طبعيت مضمون ترونکی د فطرت چې شواخون کړي
په خوارو چرته دوه بيته د نائب د ذات موزون کړي

شابه وچورلوه جام ته، د شرب د محبت بیا
په دنیا کښې بیا خورې کړه، خوشحالی د امن روغې
جنګیالو ته زېری ور کړه، ورورولی د امن روغې
د انسان نوغې پټې دي، ته د دې پټې حاصل يې
قافله د ژوند روانه او، هم ته د دې منزل يې
خزان ونې کړې لغړې، هم بې پاڼو هم بې باره
په دې سوي باغ زموږه، يو ګل بیا راشه بهاره!
راشه موږه شرمسار يو، سترګې کوزې او پښېمان هم
ټول به تاته سجده وکړو، لوی واړه زاړه ځوانان هم
سر هسکولی که زموږ دی، راشه دی په وجود ستا کښې
نو که ژوند د زهرو ګوټ دی، تېروو يې په دنیا کښې

%%%

# د حضرت علي رض شیر د خدای د ناموراز ونه برسېرول

شېر د خدای مېړنی ځوان او، وړومبی دا مسلمان دی
شېر د خدای د عشق دپاره، يو دولت د پوخ ايمان دی
ده د دې کورنی مینه، دا چې زه ځنې ژوندی یم
د دې مینې د کبله، ګوهر غوندي ځلندی یم

یمه ورك په ننداروکښې، د نرګس غوندې حیران یم
د علي په ګلستان کښې، لکه بوی آزاد روان یم
خو ټکواڼی د زمزم دی، زما خاوره له حیدره
دا نشې هم له هغه دي، چې راخیزي مي له کوره*
زما تن د تورو خاورو، له کرمه آئینه ده
اوس نعرې پکښې لیدای شي، داسي پاکه مي سینه ده
د هغه په رڼا مخ کښې، پیغمبر ؤ فال کتلی
د هغه له شان شوکته، د ملت ؤ شان ختلی
دین موندلې مضبوطتیا ده، د علي له هر ارشاده
په نړۍ کښې قانون خور شو، د هغه له پاك اولاده
د رسولρ په پاکه ژبه، دا زمری شو بو تراب  یاد
څومره شان دی چې بیا دی کړو، "یدالله" د خدای کتاب یاد
پټ پراته په دې ناموس کښې، دي بې شانه ډېر رازونه
یوه هغه چې بړغولې، چا د ژوند خواږه سازونه
دا کندو د تورو خاورو، چې د تن په نامه یاد دی
عقل تل د ده له لاسه، په ژړا او په فریاد دی
تر آسمان ختونکی فکر، دی د زمکې کج ته تونډ کړي

---

* انګور.

 حضرت عليτ ته رسول کریمρ "ابو تراب" یعني د خاورو پلار او قرآن شریف "یدالله" یعني د خدای لاس ویلی دی.

او هم دې غوړن کانه کړي، او د سترګو ځښنتن ړوند کړي
دی په لاس کښې رابمبل کړي، د هوس دوه مخي توره
دا شوکمار د لاروي کړي، زړګی مات ځته رنځوره
خاورین تن خیبر قلعاده، شېر د خدای مېړني سر کړه
کندوړي د تورو خاورو، ده رڼا د ایمان ورکړه
مرتضٰی کړو حق روښانه، چي وه يې توره بې ځواب
چي د تن وطن يې سر کړو، ځکه یاد شو "بوتراب"
د ملکونو سر کوونکی، دا زمری له کراری دی
مرغلره چې ځلیږي، ځل له داسي خود داری دی
هغه ځوك چي په نړۍ کښې، "بوتراب" شي او زړور هم
نو هغه که ورته لاس کا، کړي راهسك پرېوتی لمر* هم
هر چه زين وړباندي کښېږدي، تن د ده په واك نيلی شي
لکه وي باچاهي مهر، د سرو ګوتي کښې غمی شي

* د مازیګر وخت ؤ، دوست د خدایρ لمونځ ادا کړی ؤ او شېر د خدای حضرت علي لمونځ نه ؤ ادا کړی، دوست د خدای د حضرت علی پر پنډۍ سر مبارك کښېښو او پر کاله شو لمر او غر سره وراغلل، لمونځ قضا کېدو، حضرت علي حیران شو، چي یو خوا د خدای لمونځ قضا کیږي، بل خوا د خدای پیغمبر غلی شوی دی، هسي نه دا د وحي راتلو وخت وي، چي نبيρ به د وحي راتلو په وخت کښې هم هسي غلی کېدو، چي لمر په ډوبېدو شو، نو حضرت علي وژړل، د نبي کریمρ پر مبارك مخ اوښکي پرېوتې، پاسېدو، و يې فرمايل: "چي ولي ژاړې؟ هغه وې لمونځ مي قضا شو، نبيρ د دیارلسمي سيپارې دا آیت تلاوت کړو: "وسخرلکم الشمس والقمر دائبين" يعني خدایΨ تاسو لره لمر او سپوږمۍ مسخر کړي دي، کوم چي روان دي. بیا يې لمر ته اشاره وکړه، لمر پسته راغلو، حضرت علي د وخت لمونځ ادا کړو او پس له هغه لمر ډوب شو. اقبال د پیغمبرρ دې معجزې ته اشاره کړې ده. سمندر.

د خيبر لوېي را پرېوځي، په دنيا کښې د ده پښو ته
او بيا هلته شي وېښونکې، د کوثر غوندي اوبو ته
چا چي ځان وپېژندلو، هم هغه ؤ "يد الّٰهي" ◻ کړي
څوك چي لاس د لوی الله شي، هم هغه شاهنشاهي کړي
د علمونو ښهرېي[(0)] ته، د ده ذات لکه د ور شي
څلور کونجه دنيا کوزه، د ده حکم باندي بر شي
له نشې ډکې اوبه که، ؤ څوك غواړي له خپل کوره[(2)]
نو اول خپله خاوره، کړي په لاس کښې د زړه سره
دا دی دين د پښتګلو،چي ځان خورې کړي هوشيار شه
مېړنتوب د سرې دا دی، شېر د خدای د خاورو پلار شه
اې د ګل غوندي نازکه، کلك د کاڼي غوندي ځان کړه
په رده کښې ورته پرېوځه، پوخ دېوال د ګلستان کړه
ته اول د خپلې خاورې، يو ښه کښلې انسان جوړ کړه
له خاطره د انسان بيا، ته يو نوی جهان جوړ کړه
که ته نشې جوړولای، کور او ور او په شا تښتې
بل به ځان ته کاندي جوړې، ستا له خاورو د کور ختې
ته ګيلې کړې له آسمانه، تل د خپلو بد بختيو

---

◻ حضرت علیτ په قرآن کښې يدالله ياد شوی دی، يعني د خدای لاس.

(0) انا مدينة العلم و على بابها. ژباړه: زه د علم ښار يم او علي يې ور دی. (2) انګور.

او ستا جام په وير ژړا دی، تل د کاڼو له سختيو
په نارو، چيغو، کوکارو، به ترڅو يې وير ژړلی
څو به کړې ګيلې د بل نه، مخ او سر سينه وهلی
په تونديو د عمل کښې، پټ مضمون د ژوندانه دی
چې تخليق خوندونه در کړي، دا قانون د ژوندانه دی
مېړنتوب و ښيه پاڅه، را پيدا نوی جهان کړه
د خليل غوندې نوم يوسه، سرو لمبو کښې کور ودان کړه
که جهان ناموافق شي، ته يې رن‌ګ واخلې له رنګه
اچول د توري ډال دي، په ميدان لکه بې ننګه
هر مېړه چې مېړنی شي، پخې چارې کړي هر لوري
زمانه ورته ور واوري، بيا د ده سترګو ته ګوري
که د ده په طبعه نه شي، په ترس وګوري جهان ته
زمری ووځي و ميدان ته، پټون و وهي آسمان ته
زوړ بنياد د موجوداتو، وران له بېخه يې لت پلت کړي
او بيا نوې رده کښېږدي، دا ذرې په بل صورت کړي
د شپو ورځو ګرځېدونی، دا نظام له سره وران کړي
له دې مځکې تر آسمانه، تر او بام له سره وران کړي
يو قوت د خپلو متو، را پيدا نوی جهان کړي
چې يې زړه په کومه غواړي، په هغې لاره يې روان کړي

ژوند خو ژوند د مېړتوب دی، مېړني ژوه چي يې خوند دی
ګڼي و مره په مېړانه، دغه مرګ هم لکه ژوند دی
ازمېښتونه په خپل زور کړي، مېړني او درنې څټې
درنو چارو ته ور ووځي، ملا تړلې نغښتي متې
چي يې تل سختۍ اختيار کړې، دا د عشقه سره ښايي
خليل سرې لمبې ګلزار کړې، دا د عشقه سره ښايي
هر مېړه چي سختي پسندي، او له هر مشکله تېر دی
اندازه يې له کاره وشي، چي ګيدړ دی او که شېر دی
هر نامرده دی بې تاوه، په وسله د کينې تود دی
راشه زه يې-ې درته وايم، چي د ژوند خو بس يو دود دی
خانه! ژوند ښکاره قوت دی، د قوت سندرې وايي
اصل يې ذوق د غلبې دی، د رفعت سندرې وايي
تل بې وخت يې ځايه عفوه، د ژوند وينه کانديې موره
د ژوندون په موزون بيت کښې، د سکتې غونديې ده وروره
چي په کنده د ذلت کښې، هغه څوک دی پرېوتلي
ناتواني ته مدام وايي، قناعت دا تېروتلي
ناتواني ده غله شوکماره، د ژوندون په لويه لاره
د دروغ او ويره يې راوړه، داسي مور ده اميدواره
هيڅ نېکي د دې په نس کښې، نه شته نه ورځنې زېږي

خو بدی په څو څو شانه، په شودو د دې لوييږي
اول ونغوږه خبره، نو بیا ويښ اوسه هوشیاره
دا دښمن هغه دښمن دی، چې کښېني پټ نيسي لاره
که څښتن يې ته د پوهې، نو و نه خوري ځنې تېر
د کربوړي غوندي زر- زر، بدلوي رنګونه ډېر
ډېر پوهان هم دي ناپوهه، دا يې و نه پېژندله
پلونه پر راکابږي، مخ يې پټ کاندي پخپله
کله يې رحم کړي پړونی، کله يې کړي په نرمۍ پټه
عاجزي کله بورقه کړي، پکښې نغاړي د دې څټه
کله دوی کاندي دا پټه، په لمرو* د مجبورۍ کښې
کله يې کښېنوي په ستر، په پړدو د معزورۍ کښې
کله دا تن آساني شي، د پلو نه په غلا بلوسي
د قوت له خاوندانو، په يوه مسکا زړه يوسي
سره غبرګ دی زېږېدلی، صداقت او توان اې ګلو!
بس هم دغه جام د جم دی، که مو ځان و پېژندلو
دا ژوندون لکه پټی دی، او قوت ځنې حاصل دی
تل قوت ښه ښکاره کړي، راز د حق او د باطل دی
که په لاس د مدعي کښې، دغه پنګه د قوت وي

---

* لباس.

بې پروا د ده دعوه ده، بیا دلیل ته څه حاجت دی
چې باطل قوت پیدا کړي، ځان ښکاره د حق په شان کړي
حق د سره دروغجن کړي، او د حق یقین په ځان کړي
بیا که وواېي چې وشه، نو که زهر وي کوثر شي
خیر ته وواېي چې شر يې، د هغه له زوره شر شي
له آداب د امانت[*] نه، اې وګړيه ناخبره!
ته له دوارو جهانونو، دا یو ځان وګڼه غوره
د ژوندون رمزونه ډېر دي، ځان خبر کړه نو بیا وایه
هم ظالم او هم جاهل شه، نور هرڅه ته يې له خدایه
غوږ او سترګې دي که خوله ده، هرڅه پرانېزه هوښیاره!
بیا راځه راپوري خانده، که دي ونه مونده لاره

[*] انا عرضنا الامانة على السمٰوٰت والارض والجبال فابين ان يحملنها و حملها الانسان انه كان ظلوماً جهولاً. یعني: موږ د امانت (بار) اسمانونو، مځکو او غرونو ته ور وړاندي کړو، نو هغوی له پورته کولو ځني انکار وکړو، او ورځني و وېرېدل او انسان هغه بار پورته کړو، په تحقیق هغه ظالم او جاهل دی.

# قیصه د هغه زلمي

## چې د مرو ښارنه د سید مخدوم علي هجویريؒ دربارته وراغلو او د دښمنانو د ظلمونو ژړا یې وژړله

د خدای داسي نازولی، هجویري* بابا نوملی
چې خواجه چشتي زیارت له، ؤ د ده صاحب راغلی
په مزلو ده لمنې، خیري ویري د هر غر کړې
د دې هند په شاړه مځکه، د سجدو دانې ده کر کړې
په رڼا د مخ یې نوی، د فاروقτ وختونه بیا کړل
هم د حق توغونه پورته، د هغه د خولې وینا کړل
د قرآن عزت ساتونکی، ؤ ولاړ د دین په ننګه
د هغه له یو نظره، د باطل خونه شوه ړنګه
د پنجاب خاوره که مړه وه، شوه ژوندۍ یې له اثره
که زموږه صبا روڼ دی، دا له مخ د هغه لمره
عاشق هم ریبار د عشق ؤ، زېری روړو درنې ځتې
د تندي نور یې ښکاره کړی، وې د عشق خبرې پټې

* سید ابوالحسن علي ډېر لوی ولي تېر شوی دی، په کال 401هجري په غزني هجویري نومي محله یا کلي کښې پیدا شو. د علم د حاصل کولو نه پس په خراسان کښې ماوراء النهر ته لاړو او بیا په کال 431 هجري کښې پنجاب لاهور ته را ورسېدو، ډېره موده یې په پنجاب کښې د اسلام تبلیغ وکړو. "سید ابوالحسن علي مخدوم هجویري" مشهور په "داتا ګنج بخش" په کال 460 هجري کښې یې وصال په نصیب شو. والله اعلم.

د هغه مېړني واوره، يو داستان په دې پټې کښې
د ټول باغ بوی او رنګونه، ځايومه په غوټې کښې
يو زلمی چناره ونه، مرو يې نوم د هغه ښار ؤ
د لاهور په سېمه راغلو، را روان په دغه لار ؤ
د بابا درشل ته راغلو، دا ستومان ستړی د لارې
چې دا لمر يې تورو شپو ته، ور اوړدې کړې خپلې دارې
وېل تن-ګ کړی دښمنانو، زه بې بدو او بې ښې يم
په ما دی باران د کاڼو، شراب لوښی د ښيښې يم
اې د لور مقام خاونده، څه چل وښيه زه خوار يم
ژوند به څه رن-ګ تېرومه، دښمنانو کښې حصار يم
ځوان ته هغه بابا ووې، چې په خټه کښې جمال ؤ
د جمال سره يې موندلی، هم په برخه کښې جلال ؤ
"لنډ نظره يې زلميه! ، بې خبر د ژوند له رازه
نه خبر يې له انجامه، نه خبر يې له آغازه
د چا ويرې ته په زړه کښې، ځايګی مه ورکوه ترېښ شه
پر کالی ورې قوت يې، لږ سره وځنډوه وېښ شه
کاڼي کاڼي ؤ په ځان يې، د ښيښې ګومان کولو
نو د کچ غوندي کچه شو، کچ دی څيز د ماتېدلو
که ځان وګڼې ناتوانه، لاروي حوصله پرېښوه

د خپل سر پنګه یې پخپله، د شوکمار په لاس کښې کښېښووه
چې تر څو به ته ځان شمارې، ګوډاګی د اوبو خاورې
اې شعله د طور پیدا کړه، له دې خپلې ختې ناورې
دا له خپلو عزیزانو، ګیلې مه کوه بې ځایه
دښمن د دښمنۍ هم، مه ژړا کړه مه څه وایه
دښمن نه هغه ستا دوست دی، دوست زما درباندي سود دی
که زما په خوله یقین کړې، ستا بازار په هغه نود دی
چې د ځان د پېژندلو، له مقامه څوک خبر وي
د خدای فضل ورته وایي، که دښمن یې زورور دی
هر دښمن لکه وریځ ده، د آسمان پر پټي ووري
د کولو قوتونه*، یې دا راویښ کاندي هر لوري
د لار کاڼي هم اوبه کړي، پوخ همت او نیت تر لري
د چړق لاره کښې دا هیڅ دي، که وي لوړي که ژورې
د لار کاڼی خو پرچو شي، د نیت تیغ تېره کولو
امتحان د تېرې توري، شي د لار په غوڅولو
د ځاروي ژوندون دي ورک شي، ډکېدو د تښتېدو دی
چې خودي مضبوطه نه وي، نو څه خیر د پاتېدو دی
چې قوت د خودۍ واخلې، ځان له ځانه خبردار کړې

---

*ممکنات.

بیا که زړه دي کړله خوښه، ټول جهان به تلر په تلر کړې
که دي خوښه وي چي ورك شې، له خودئ څنې آزاد شه
که دي زړه غواړي چي شته شئ، له خودئ څنې آباد شه
له خودئ چي څوك غافل شي، دغه مرگ دی ځان و ژاړه
ته څه وايې چي مرگ څه وي، گڼي ساه چي له تن لاړه
په خودئ کښې دومره پلس شه، چي یوسفυ يې کوټه زر شه
د تياره د جېلخانې نه، تر شاهۍ پوري څه ورشه
د خودئ په لار روان شه، کار کوونکی ځوان د ځای شه
ته راوړونکی د رازونو، مېړنی بنده د خدای شه"
په قيصو بيانولو، کړم د راز څهره بربنډه
زما ساه د سپرلي باد شي، خوره يوسي غوټۍ غونډه
دا خبرې دي د نورو، په ښکاره چي زه لگيا یم
ډك له خونده آدم خان ته، درخانۍ رازونه وایم

# قیصه د تږې مرغۍ او مرغلرې*

د چمن یوه مرغۍ وه، ساه یې ختله داسې تږې
له مېنو کې تلې لوخړې، اور یې بل په ینه سږې
مرغلره یې ولیدله، سترګې یې کړلې ورته برندې
تر نظر اوبه کړو، دغه کاڼی یې ته تندې
خپل ښایست دغه ګټلی هم، لکه لمر و ځلولی
د ناپوهې مرغۍ سترګې، وې او بتیر  په ځل غلولی
دې پر کښېښوله مېنوکه، اوبه نه وې وریته دا شوه
مرغلره په ځان کلکه، په دې پورې په خندا شوه
دې تې ووې چې اې ترورې، بس ټونګې وهې نه ګورې
نس په مخه یې اخستې، پیتاؤ پېژنې نه سیورې
نه ساقي یم ستا دپاره، نه یم څاڅکی اوبه زیاتې
نه پرته یم هسې خوشې، نه هرچا ټونګې ته پاتې
زه دې خوږ کړم په مېنوکه، ستا ژوندون د لېونتوب دی
هغه ژوند چې ځان ښکاره کړي، ستا دپاره لکه خوب دی
دا زما اوبه مدام کړي، د مرغو مېنوکې ماتې

---

* علامه اقبال د الماس ټکړه او مرغلره دواړه استعمال کړي دي، او مقصد یې یو دی، ما یوازې مرغلره واخسته.

سراب

انسانان که مي کړي تېره، شي په خوني پر میراتۍ
چي پوره ورځنۍ نه شوه، د مرغۍ د زړه خبره
ورو تريې لاړه په ځای پاتۍ، ځلېدلۍ مرغلره
ارمان ونه رژېدلو، په زړګي کښې يې آباد شو
د مرغۍ وچه مرۍ کښې، خوږ آواز لکه فریاد شو
څاڅکي پرخه مرغلره، د ګل څانګې و تومبلې
لکه اوښکه چي د چوڼې[*]، په بانه وي ځلېدلې
لمر پر کړلې زبادوني، دی ستایلو برېښنده ؤ
د هغه له ډېرې ويرې، نازک تنه لړځنده ؤ
لکه ستوری ځغلېدونکی، له آسمانه زېږېدلی
د ژوند خوند يوې ګړۍ ته، مېلمنه وه درولی
غوټو هم ګلو تېرېستی، يو ځل نه په هزار واره
د ژوندون نه يې نصیبه، مدام خواره بزګاره
لکه اوښکه د عاشق وه، په بڼو کښې ځلېدونکې
دا قطره پردۍ پردۍ وه، درن-ګ ساعت له پرېوتونکې
هم د دغه څانګې لاندي، دا مرغۍ و رسېدله
د دې تږي وازې خولې نه، دا قطره و څڅېدله
اې په ځان مینه وایه، له دښمن چي کوې ویره

[*] بلبل.

نرم څاڅکی يې د پرخې، او که کلکه مرغلره؟
چې د تندي له ډېر زوره، د مرغۍ نه ساه ختله
د بل سر يې خور کړونه، وه په دنيا کښې لاره بله
نه د څاڅکي غړی کلک ؤ، نه يې ؤ خوی د مرغلرې
ګوهر پاتې په دنيا و، څاڅکي شوله نړی* لرې
د خودی په حفاظت کښې، ګړی هم چې يې غم نه شې
که ژوند غوارې کلک ګوهر شه، نرم څاڅکی شبنم نه يې
د خپل ځايه مه ښورېږه، پوخ فطرت لکه د غر شه
چې لري آباد سيندونه، وريځ هغه پګ په سر شه
ته د ځان د پېژندلو، خپل ځان وموسه خبر شه
کړه دا خپله پاره تينګه، لکه يې کوټه سپين زر شه
د خودی تار له ترنګ ورکړه، هسکې کړه خورې سندرې
چې د هر چا غوږ ته ورشي، د خودی پټې خبرې

%%%

# قيصه دلعل اوکوئل

پوري ور د حقيقت ؤ، ستا پاره مي کړو لرې
راشه اې د زړګي سره، نورې هم واوره خبرې

---

* دنيا

یوه ورځې کوئله راغله، لعل ته کښېناسته په څنګ کښې
دې وېل اې چې تل ځلېږې، د ډېوې غونډې په درنګ کښې
په یو درنګ کښې دواړه وو سو، زموږ ختې نسل[*] یو دی
په جنو جدا جدا یو، خو د ساه مو اصل یو دی
په تیاره درنګ کښې وروسته شم، بې کسی مې تن ځپلی
ته په سر د باچهانو، په تاجونو کښې ټومبلی
تور مخ داسي کړم بې قدره، تورې خاورې یم د لارې
ستا نصیب داسي ښایست شو، چې چوي زړه د هنداري(2)
که زما له تور وجود نه، ده رڼا په انګیټو کښې
اخیر وسوځم ایره شم، ژوند مې خلاص شي په بټو کښې
سر زما وهي په لتو، هر څوک وايي ده بدرنګه
سرې سکروټې را دلی کړي، ټول زما د ژوند په پنګه
سر سامان مې د ژړا دی، ځکه تل په ژړا زه یم
دا زما وجود چې ویني، څه خبر یې چې له څه یم؟
یم هغه خوره لوخړه، چې را یو ځای او سره شي
سرمایه زما سپرغی ده، په تس والوځي او مره شي

---

* ماهران وايي: "چې کوئله د خښو ځنګلونو نه جوړېږي، لکونه کالونه پخوا چرې د زلزلې یا په بل څه وجه ځنګلونه په مځکه کښې خښ شوی وو، دومره موده پس هغه نن موږ د کوئلې په صورت را اوباسو، لعل د کوئلې ورور دی، یعني دواړه د کاربن ځنې جوړېږي، خو رنګونه یې ځکه بیل دي، چې کوئله د ونو بوټو ځنې او لعل د پوټو د چیږ ځنې قدرت تیاروي. خو لکونه کالونه پر لګي. (دوقرآن، برق) (2) آئینه.

ستا د ستورو غوندي خوی دی، هم دي مخ هسي ځليږي
هره ډډه دي رڼا کړي، هر يو اړخ دي بليږي
کله ته لوړو ماڼو کښې، د قيصر د سترګو تور يې
کله ستا نه ښايست اخلي، د خنجر په موټي سور يې
ورته لعل ووې چي غوړ کړه، نصيحت دی که يې واورې
روڼ غمی ځنې جوړيږي، چي پڅې شي تورې خاورې
چي په خپله خوا او شا کښې، ملا تړلې تل په جنګ وي
شي د کاڼي غوندي کلکې، هم د کاڼي غوندي يې رنګ وي
له پخوالي نه موندلې، زما تن دي رڼاګاڼې
په سينه کښې مي هم نور دی، لکه وينې مي خواګاڼې
ته يې ځکه داسي خواره، چي وجود د کچه رغړي
ځکه وسوې او ايره شوې، چي يې خونده دي ستا غړي
اوسه بې غمه بې ويرې، په نرۍ کښې بې وسواسه
په کلکوالي کړه ځان کاڼی، کمه مه شې له الماسه
هر چه کلک وي په زغملو، هر چه کلک وي په نيولو
منور کړي دواړه داره، د خپل نور په ځلولو
د هغه هم اصل خاوره، چي تور کاڼی شي بللی
د حرم په ګرېوانه کښې، چي کوم سر دی را اوکښلی
شوه د طور نه هم لا ډېره، مرتبه د هغه پورته

ښکلی مخ د ښکلولو، شو هغه سور ته هم تور ته
د عزت ژوندون که غواړې، نو پیدا کړه ښه پوخوالی
ناتواني که ناچاري دي، دا پیدا کړي نه پوخوالی

%%%

# قیصه د شیخ او بامبڼ

یو بامبڼ په بنارس کښې، شپه او ورځ په دې لتون ؤ
چې ژوند څه وي او مرګ څه وي، سر يې اینبی په رنګون ؤ
دی څښتن د ډېر عزت ؤ، د ډېر علم او حکمت ؤ
او د خدای کتونکو خلګو، سره يې مینه محبت ؤ
ؤ يې ذهن رسېدونکی، وې پکښې نوې خبرې
ثریا ته رسېدلې، وې د عقل يې وزرې
اینبی ده د ځالې ډکې، د عنقا غوندې ډېر بر ؤ
په انګار د ده د فکر، سپیلنې سپوږمۍ او لمر ؤ
د ده عمر په خوارۍ او، شواخون کښې وتې تول ؤ
له شرابو د حکمت نه، يې لا تراوسه تش کنډول ؤ
ده د علم په چمن کښې، خپل دام بیا بیا وغوړولو
د معنا مارغه يې په سترګو، چرې هم ونه لیدلو
نوکی يې فکر کړی په وینو، خو وه غوټه ډېره سخره

پرانستی شوه داسي چرته، دا د ژوند او مرګ خبره
نا امید يې زړه کښې اور شوی، پر ګواه د اه لوخړه
د حيران زړه غمازګره، شوه څهره يې تکه زېړه
چرته داسي کامل ښخ ؤ، زړه يې-يې دولت ؤ په سينه کښې
دا بامبړ هلته حاضر شو، پرېوت شيخ ته په کوڅه کښې
غلی يې کښېناستو په وراندي، هيڅ يې نه ختل ږغونه
د کامل وينا ته يې کښېښول، د سره هم د زړه غوږونه
شيخ وې اې چي بره چورلې، د آسمان په پورته لوړه
ته خو مځکې ته را کوز شه، لږ په خاورو هم وه رغړه
چي صحرا او په ميرو کښې، منډې وکړې خوند يې ډېر دی
ستا خو فکر آس په ترپو، له آسمانه هم ور تېر دی
راشه مځکې ته را کوز شه، مه اسمان کښې ګرځه لرې
بس کړه مه لټوه نورې، دا د ستورو مرغلرې
زه دا نه وايمه تا ته، چي له بت ځنې وېزار شه
که کافر يې کافرتوب کړې، لږ جوګه خود زنار شه
زوړ تهذيب ستا د نيکونو، امانت دی اې بې پته
زَړه لاره چي پرې نه بړدې، نصيب مه وهه په لته
که دنيا کښې جمعيت دی، چي ژوندون تر د ملت دی
کفر هم هغه دولت دی، چي پيدا له جمعيت دی

اې! چې ته په کافرتوب کښې، کامل نه يې لا تراوسه
زړه حرم دی د طواف يې، قابل نه يې لا تراوسه
موږه دواړه لرې وتې، يو د لارې د تسليم نه
ته يې لرې د آزر نه، لرې زه د ابراهيم نه
قيس زموږه لا تراوسه، په سودا د محمل نه شو
لېونتوب د عاشقۍ کښې، دی تر اوسه کامل نه شو
چې د تن د تيارې خونې، ډېوه ګۍ د خودۍ ګل شي
خير يې څه که د خيالونو، تر آسمان پورې ختل شي
او يو لاس ور واچولو، يوه ورځ د غره لمن ته
ګنګا سيند خبره وکړه، همالې د ملک مين ته
وې چې اې چې ازل راسي، يخې واورې ستا دستار دی
هر يو سيند چې بهېدلی، ستا په تن لکه زنار دی
خدای دې برخه کړه دنګوالی، تر آسمانه رسېدلې
ولې پښې دې په ځای ښخې، نه يې له ځايه ښورېدلی
چې يې پښې درنه اخستې، نه د لار نه دی رفتار دی
دا کلکوالی که غټوالی، اوچتوالی د څه کار دی
ژوندون پر له پسې ترړې، ژوندون نوم دی د کرکندو
د موج ژوند ته سامان وکړو، په سر تورې ډېرو منډو
غر له خود ځنې وتلی، د درياب په دې پېغور شو

قهر داسي وه چولو، تا به وي چي سيند د اور شو
ورتې ووې چي سينه خو، ما ته تا هينداره* کړې
واوره ستا غوندي سيندونه، ډېر زما له سينې رغړې
په قدم د ناز روانه، داسي تلونکې مدام سپک شي
هر بېې سول چي ځان ترې ورك شي، ځای لري که هغه ورك شي
چي له ځانه خبر نه وي، هغه څه وي ستا په شان وي
تل په هغه څه نازېږې، چي په کومه کښې دي زيان وي
پاس اسمان چي سر پر چورلي، ته ‌ پيدا يې له هغه نه
هغه غاړه ستا نه ښه ده، چي پرته وي تل ريمنه
خپل ژوندون دي وسپارلو، لوی قلزم ته نه ده رنګه
دا خو تا په خپله کښېښوه، د غلو مخکښې د ځان پنګه
لکه ګل د باغ دننه، شه خوددار چي لار دي شور شي
په ګل شوکو پسې مه ځه، په دې نيت چي بوی دي خور شي
په خپل ځای زرغونېدل ژوند، په خپل ځای دی لوئېدل ژوند
د خودیٔ له باغيچې تل، د ګلونو ټولول ژوند
پښې په خاورو کښې ولاړ يم، مودې وشوې ډېرې زياتې
ستا ګومان څه دی چي زه يم، د منزل نه ګنې پاتې؟

---

* آئينه.
 د هندو قام دا عقيده ده چي ګنګا سيند له آسمانه راغلی دی.

زه وړوکی دومره دنګ شوم، وختمه تر آسمانه
ثریا د می ته غوړې، د لمن سیوری زما نه
سمندر ته پرېووځې ورك شي، نه د مومې كه څوك ګوري
زما څوکه دومره هسکه، چې سجدې پر کوي ستوري
زما کڅې همه کڅې، د آسمان پټې خبرې
د ملکو الوت اورم، چې خورې کاندي وزرې
چې د پر له پسې سعي، اور کښې تېر کړل ماکالونه
نو هله مې ګټه ګټه، شول غمې الماس لعلونه
دي په ما کښې سره کاني، په هر کاني کښې پټ اور شته
نه مې اور ته رسېدای شي، نه اوبو کښې دومره زور شته
دا خو سیند یې كه یې څاڅکی، خپلو پښو ته هم مه غورځه
سمندر ته آرامېږه، هر طوفان پسې ور ګرځه
څاڅکی ځان کړه مرغلره، په طلب د روښنایۍ شه
شه یې زوړنده په غوږ کښې، یو ښایست د درخانۍ شه
یا خوره تونده وریځ شه، ګټې ګټې غورونه غرونه
د سیندونو ورووںکې، غورزوونکې تندرونه
چې قلزم هم تا ته در شي، او طوفان په سوال و غواړي
بیا ستا ور کړی ته تنګوالی، د لمنې دی و ژاړه
پس له هغه به ځان ده ته، کم له موجه هم وه ښکارې

# دغزا مقصد

## د مسلمان د ژوند مقصد د کلمې طیبې اوچتول دي او جن-ګ که د ملکونو اخستو د پاره شي نو په اسلام کښې حرام دی

زړه* د خدای په رنګ کښې رنګ کړه، غوره رنګ دی اې لالیه!
که د عشق په ننګ ناموس يې، کلك ولاړ اې ننګیالیه
مسلمان د عشق له تاوه، تل بېباکه او قاهر دی
مسلمان چي عاشق نه وي، مسلمان نه دی کافر دی
که څه ویني که نه ویني، خو منل به د خدای پاك کړي
هم په وینه هم په خوب کښې، تلست روان که څښلك خوراك کړي
د لوی پاك الله رضا شي، په رضا د ده کښې ورکه
دا خبره ده هم داسي، څوك باور نه کوي ځکه
په میدان د الاالله کښې، تمبو ښخ کړي هر څه شاته
راغلو دی په اولسونو، یو شاهد ویرې دنیا ته
او په ده شاهد نبي دی، چي سردار دی د نبیانو
چي ربښتونی تر بل نه شته، یو شاهد له شاهدانو

* و من احسن من الله صبغة. او د خدای د رنګ ځني بل کوم رنګ ښه کېدای شي.

و کذالك جعلناکم امة و سطالتکونو شهداء علی الناس و یکون الرسول علیکم شهیداً. (سورة بقرة آیت: 143. ژباړه: او دغه شان اې مسلمانانو! موږ تاسو یو بهترین تولۍ کړۍ چي تاسي په خلکو شهادت کوونکي شئ. او د الله رسول ستاسي شاهد شي.

تېر شه تېر له قال تېرشه، د حال وروهه صدا کړه
توري شپې د عملونو، ته په نور د حق رڼا کړه
په قبا د باچهۍ کښې، دروېش زوه لري ځای
بیداری لره لېمو کښې، او په زړه کښې یاد د خدای
د خدای خوا ته تلل مقصد کړه، هر عمل چې کړې دنیا کښې
تر هغې چې رابښکاره شي، د هغه جلال په تا کښې
هغه صلح دي هم شر دی، چې له کومې مقصد غیر دی
که د خدای دپاره جنګ وي، نو دا جنګ هم لکه خیر دی
څو به زور زمور د توري، چې د حق نوم اوچت نه دی
داسې جنګ د قام دپاره، توره نه ده عزت نه دی
میان میر* د خدای نیازبین، ؤ روح يې پاك او د دین متې
وې ښکاره يې د څتې نور ته، همګې خبرې پتې
سیخ پر لار د مصطفیٰρ تلو، محکم والی يې بې خبرې
په شپېلۍ د ده د تن کښې، وې د عشق سوې سندرې
اوس زمور دا ښار د خاورې، د ده څلی سعادت دی
او هم دا زمور دپاره، بل مشعل د هدایت دی
پاس آسمان دی پر سر ایښی، د ده داسې ده درشله
شهنشاه د هندوستان يې، مرید شوی ؤ په خپله

* د میاڼ میر صاحب زیارت په لاهور کښې دی.

د باچا په زړه پټې کښې، حرص تخم رازرغون شو
چې د بل ملکونه واخلي، سر په دې تابیا تړون شو
د حرص تاؤ يې په زړه کښې، لکه سور تنور د اور وي
سرې لنبې ژبې يې دا وې، "څه راواچوه که نور وي"
دغه ورځو کښې تود شوی، د دکن پر مځکه جن‌ګ ؤ
د لښکر يې په میدان کښې، د اکښلو تورو شرنګ ؤ
میان میر صاحب ته لاړو، شهنشاه چې دعا واخلي
د دعا له برکته، دی دا ټوله دنیا واخلي
مسلمان خو له دنیا ځي، تل په تېښته د حق خوا ته
پخول چې د تدبیر کړي، نو لاس پورته کړي دعا ته
شهنشاه وې دعا غوارم، میان میر صاحب شو غلی
هم ټولګی د درویشانو، شو غوږ غوږ او ساه نیولی
یو مرید له ورایه راغلو، روپۍ لاس کښې د پیر خوا ته
په قراره په ادب يې، د چپتیا تیره کړه ماته
وې چې اې کامله ځوانه! ، د تیرو نو دستګیره
شکرانه مې کړه قبوله، ډېر لږه ده اې پیره!

---

د سیني په تناره کښې يې حرص بل ؤ لکه اور وي خپلي توري ته يې ښیلې دا نعره وه "که څه نور وي"
په دې شعر کښې دې آیت شریف ته اشاره ده: "یوم نقول لجهنم هل امتلئت و تقول هل من مزید. پاره: 26. ژباړه: په هغه ورځ به موږ له جهنم تپوس وکړو چې ته ډک شوې؟ هغه به وایي: "نور څه شته؟

د محنت په سیند خویلو کښېږ، چې غوپه شوه زما څټه
ایله دا یوه روپۍ مي، په لمن پوري کړه غوټه
و وې پیر چې دا روپۍ خو، حق د دغه شهنشاه دی
په لمرو د باچهي کښېږ، بېنوا وږی ګدا دی
که یې دي تر حکم لاندي، لمر، سپوږمۍ هم واړه ستوري
خو سلطان مو ډېر غریب دی، خوار په خوارو سترګو ګوري
په هر لوري د بل شکور ته، خواري سترګي دي نیولې
د ده لوږه سرې لنبې دي، دا دنیا یې سوځولې
قحط، طاعون د دې تابع دی، توره یې داسي ده تاؤ ګېره
جهان وران لکه کنډر شو، دا د ده له دې تعمیره
دا د ده غریبي څه ده، یو جهان یې په فریاد کړو
د تش لاس شندي یې ګوره، هر کمزوری یې برباد کړو
د ده زور قوت دښمن شو، اوسېدونکو د جهان ته
دې شوکمار ده لار نیولې، د انسان نوعي کاروان ته
په خطا فکر روان دی، ځان تېرباسي شاڼې لار ته
دا یې څومره ناپوهي ده، چې تسخیر وایې ناتار ته
که فوځونه د دښمن دي، که زموږ د شاه لښکر دی
هم د ده لوږه خنجر دی، دوه ډولې د هر یو سر دی
یوه لوږه د ګدا وي، بس ګدا لره تن سوځي

ولې لوړه د شاهانو، اولسونه وطن سوځي
د چا توره چې بمبل شي، بې له خدای کړي ګټې نورې
خپله توره بې اخیر خیږي، هم له خپلې سینې پورې

%%%

# د صحرايي* بابا نصیحت

اې! چې خاورو کښې را لوی شوې، لکه ګل پکښې هم پاېې
ته هم دې ښایسته چمن کښې، د خودۍ له نس پیدا یې
خودي مه پرېږده هيڅ چرې، تول عمرې ژوندون و مومه
که یو څاڅکی یې نو یې به، اباسین وه نغره درومه
دغه نور د خودۍ نور دی، دا چې ته ترې برېښنده یې
که خودي دې کړه محکمه، نو هله به پائنده یې
ویده نه شې ورته لاس کړه، چې سودمنه دا سودا ده
حفاظت د خودۍ وکړه، چې لوېې په دې کښې ستا ده
لا ژوندی یې مرې له ویرې، وېرېدونکی له فنا یې
اې له سره د لوړې شم، پوهېدلی ته خطا یې

* د ډېرو خلګو خیال دی، چې د صحرائي بابا په کند کښې اقبال صاحب پخپله ناست ؤ.

زه خبر یم راشه خوا ته، واوره ترنګ د ژوند له سازه
چې د ژوند سندره څه وي کړم خبر به دي له رازه
دي غوټه وهل په ځان کښې، په مثال د مرغلرې
بیا ترلې ملا له ځایه، رسېدل دي لرې۔ لرې
د ایرو په دې ډېران کښې، د سرو ټکو غونډول دي
په یو غر لمبه کېدل دي، نظرونه سوځول دي
دا د غم خو ته وسوځه، چې زړه شوه څلوېښتو
له ځان تاؤ هغه شعله شه، چې تاوېږي تل په تېښتو
ځان د بل له طواف خلاص کړه، له تا ځار شم دغه ژوند دی
ځان کعبه کړه ترې تاوېږه، دغه ژوند دي ډېر لې خوند دی
وزر ووهه خیره، د دې خاورو له راکښلو
د مرغانو غوندي ګرځه، بې پروا له پرېوتلو
که مرغۍ د الوت نه یې، شته خبره ستا په کار کښې
ته بیا مه جوړوه ځاله، د دې خاورو په تور غار کښې
علم بحر وړل ترې غواړې، په څولیو مرغلرې
نو د زړه په غوږو واوره، د رومي بابا خبرې
" علم تش د تن دپاره، تور ښامار دی د ګوزار دی
علم هغه زړه چې ویښ کړي، یو ښه یار دی تل په کار دی"
د رومي بابا له حاله، ځان خبر کړه د زړه سره!

حلب[1] ښار کښې درس لوستی شو، د علمونو له دې لمره
وو د عقل دلیلونه، یو ځنځیر د ده په پښو کښې
او بېړۍ يې جوړېدله، بس د عقل غلغلو کښې
موسیٰ وه خو بې خبره، دی د عشق د طور له سره
مینه څه وي سود يې څه وي، له سودا يې ناخبره
تشکك[1] او که اشراق(2) دی، وو لګیا په دې خبرو
تل به ده پېیل هارونه، د حکمت د مرغلرو
مشائین(3) ته پرانستې ده، د سوالونو سخرې غوټې
په رڼا يې د خپل فکر، کړې ښکاره خبرې پټې
ګېر چاپېر به ترې پراته وو، کتابونه انبارونه
د یو یو به ده بیان کړل، چې په کښې وو اسرارونه
ووې شمس تبریز ته، خپل مرشد صاحب(4) کمال
ورغلو د پیر په حکم، مدرسې ته(5) د جلال
وې دا څه بحثونه کیږي، او دا څه شور او غوغا ده؟
وهم قیاس استدلال دي، دا د څه چارې وینا؟

---

(1) حلب" د شام په ملك کښي یو ښار دی.

(1) (2) د یونان د فلسفي پخوانۍ مدرسې یا دوه علمونه تشکك او اشراق وو، په انګرېزۍ کښې تشکك ته Seeptieism او اشراق ته Neoplatonism وايي اشراق د افلاطون د فلسفې نتیجه ده، په اسلامي تصوف يې ډېر اثر کړی دی. شیخ شهاب الدین سهروردي د دې علم ترتیب وکړو کوم چې سلطان صلاح الدین د وخت عالمانو په فتوٰی ووژلو.

(3) مشائین د حکیمانو هغه غونډه چې د ارسطو متابعت يې کولو یعني (Peripateties)

(4) حضرت شیخ کمال الدین جنیدي رح.

(5) جلال الدین رومي رح

ملا سخته ورته ووې، چې خوله ونیسه څه رړند یې
د پوهانو په خبرو، نه پوهیږې عبث خاندې
ووزه ورك له مدرسې شه، ښه پښې و باسه نه پوهیږې
قیل او قال دی د پوهانو، ستا څه کار په څه پوهیږې
ستا له پوهې ډېره پورته، دا زموږ تر منځ وینا ده
هم د دې وینا له نوره، د ادراك بنسټ رڼا ده"
د ملا بې جوړ خبرو، تاؤ د شمس* یو په څلور کړو
سرې لمبې شوې ځنې پورته، د ده روح یې سره اور کړو
لکه تندر یې نظر ؤ، چې ور پرېوتو پر مځکه
تا د روح یې ؤ بې شانه، سرې لمبې شوې هسکې ځکه
د زړه اور شو تر چاپېره، لمبه یې درمن د ادراك کړو
لوی دفتر د فلسفې ؤ، اور ایره لکه خشاك کړو
ملاګی له خبر نه ؤ، چې عشق څه وي رنګ یې څه وي
رباب څنګه وي د عشق او، معجزه د ترنګ یې څه وي
ده کړه چیغه "چې دا څه کړې، تا خو اور ولګولو
د حکمت دفتر د ما ته، سر تر سر وسوځولو"
هغه وې چې "مسلمان یې، خو په غاړه دي زنار دی
ذوق او حال د لېونو دی، غلی کېنه ستا څه کار دی

* شمس تبریزيرح (2) مولانا رومرح.

د حال نخښه مو بې شانه، ستا له فکره سر بالا ده
دا د څاورو نه زر جوړ کړي، سره لمبه زموږ کيميا ده
د حکمت له يخو واورو، سرمايه ستا ودريږي
ستا د فکر له وريځو، نور څه نه ږلۍ وريږي
پاڅه پاڅه سره اورونه، د خپل ځان په خشاک بل کړه
له دې تورو خاورو هسکې، سرې لمبې ته په يو ځل کړه
د مسلم علم کامل شي، چې په زړه کښې اور پيدا که
د اسلام معنا خو دا ده، چې اُفلو* ته بس شا که
ابراهيم چې ځان آزاد کړو، د افل ځنې په نره
سور انګار ورته ګلزار شو، نه ده دا پټه خبره
د حق علم ته دي شا کړه، مخ باطل ته نه وه رنګه
په يو ټوك ډوډۍ دي ورکړه، دومره لويه د دين پنګه
تل په منډو ترړو سر يې، هر خوا زغلې رانجه ګورې
هيڅ له ځانه خبر نه يې، دي ځائې د سترګې تورې
برېښېدلي بمبل توره، به اوبه د حيات درکړي
ډك له زهرو تور شامار به، خپله خوله جام د کوثر کړې

* حضرت ابراهيم خليل الله د آسمان په برېښنده ستوري د خدای ګمان وکړو، خو چې هغه ستوری پرېوتو نو حضرت ووې: "چي "لا احب الأفلين" يعني زما پرېوتونکي څيزونه خوښ نه دي، بيا يې لمر، سپوږمۍ وليدل چي را وختل دوباره هم هغه ګمان وکړو خو چي هغه پرېوتل نو د الله پاك نور يې وليدو. (انعام)

هغه تور[1] بختور کاڼی، غواړه ته له درمساله
له نامه د لېوني سپي، غواړه مشک چې درکړي تا له
ولې سوز د عشق مه غواړه، په حاضر[2] علم کښې نشته
خوند د حق د جام مه غواړه، په کافر علم کښې نشته
د دې علم په رڼا کښې، څه هم ډېره موده ورک وم
وم رازدان د نوي پوهې، ځکه ډېره موده سپک وم
باغوانانو د دې باغ چې، په ما وکړو امتحان
نو راز هله راښکاره کړو، ما ته دوی د ګلستان
ګلستان نه عبرت ځای دی، لکه تل وي د ریدیو
لکه ګل چې د کاغذ وي، دی او بتیر[3] د خوشبو هیو
چې د دې ګلشن له بند یم، آزاد شوی کله راسي
د طوبیٰ په څانګه ما کړه، ځاله جوړه هله راسي
د نن علم غټ پلو دی، پروت زموږه پر نظر دی
د ړانده کړو بت پرست دی، بت فروش دی هم بتګر دی
په زندان د مظاهر کښې، شا مدام دی پښې تړلی
او د خس له سرحدونو، په تلاش نه دی وتلی
زړه یې خور د ژوند په لار شو، د ده پښه چې وښویېدله
آخیر ده په خپله توره، مری ځان ته غمه کړله

---

(1) حجرِ اسود.		(2) د نن زماني علم و فن.		(3) سراب.

د ده اور د رېدي اور دی، تاؤ يې نشته زما ناورې
په ښکاره تر شعلې خيژي، ننه يخ دی لکه واورې
دی ځايي د عشق له سوزه، بس راغلی دی آزاد
په نړۍ د جستجو کښې، تل ناکام دی هم ناښاد
رنځوري د عقل ډېري، عشق طبيب دی بله نه شي
عشق چې رګ ووهي ده ته، ليونتوب د عقل ښه شي
ټول عالم که وپوهيږي، په سجده د عشق کښې سود دی
منم عقل سومنات دی، ولې عشق ورته محمود دی
عشق شراب د نوي علم، کوزګې ترې تشه توره
بې نصيبه د ده شپې دي، د "الله الله" د شوره
خپل شمشاد درته ښکاره شو، ډېر بې قدره بې قيمته
د بل سرو درته ښکاري، له هغه ډېره اوچته
په خپل ځان د شندي وکړې، بې ځان ډډ لکه شپیلۍ شوې
پردي بڼغ ته دي غوږ کښېښو، خوند يې درکړلو للی* شوې
په خوزي پسې ګرځې، له پدري ښکار نه يې غواړې
ته خپل جنس ورپکښې ګورې، او پردي دوکان ته لاړې
د مسلم په غونډه غيري، ډيوې اور ولګولو
او سپرغۍ د درمسال يې، جومات و سوځولو

* يعني اوده شوې.

د کعبې له خوا او شا چې، هوسۍ تر پلل پاتې نه شو
نو دا حال یې شود نشو، کړل غلبېل د ښکارې غشو
لکه بوی د ګل چې خور وي، پاڼې هم هسې خورې شوې
د خودۍ نه تښتېدلیه! ، شه راستون ذرې ذرې شوې
د قرآن غوندې کتاب کښې، د حکمت امانتګره!
تا ورك کړی خپل یووالی، بیا و مومه شابه نره
د ملت یووالی کوټ دی، په وره موږ ؤ درېدلي
د یووالي په پرېښولو، له ایمان شو لاس وینځلي
د زاړه ساقي پیاله وه، هغه ټیکری تار په تار شوه
د حجاز د مستو غونډه، خوره بېله بېله یې لار شوه
موږ په خپله کعبه کړله، په بتانو بیا ودانه
په اسلام پوري زموږ، کفر شین شو له خندا نه
شیخ دولت د اسلام بائلو، د بتانو د عشق لار کښې
د تسپو دانې ناپوهه، و پېیلې په زنار کښې
د پیرتوب دپاره نخښه، سپین وېښته دی د پیرانو
په کوڅو کښې پسې ځغلي، دخندا کړل هلکانو
وېښته سپین او زړه یې تور دی، نه پر لااله انځور دی
د هوس بتان بې شماره، د هر یو زړه ورته کور دی
هر هغه پیر شو چې چا کړه، اوږده ږیره لومې لومې

هئ! د دین په خرڅول کښې، خیژي دوی تر کومي کومي
دوی سره د مریدانو، شپه او ورځې په سفر وي
د ملت له ښې او بدي، ضرورت نه څه خبر وي
دوی رانده په غبرګو سترګو، ګڼي دي نرګس صورته
سپینې خوارې تشې تورې، د ژوندي زړه له دولته
که صوفي دی که واعظ دی، په منصب پسې تل خوار شو
دی روان په کږو لارو، ټول ملت بې اعتبار شو
واعظ سترګې بت خانې ته، که وي خیر په ځان یې سود دی
د پاك دین مفتي تاجر شو، د فتوو بازار یې تود دی
پیران مخ په میخانه دي، د دوی لار کرښه د مار شوه
اې یارانو! غونډه وکړئ، چې زموږه کومه لار شوه*

%%%

## وخت غوڅوونکې توره ده*

د رحمت باران کړه ځلی، شین هم تر د شافعي[رح]
چې نشه یې کل جهان کړو، دا دی کور د شافعي[رح]

* داسي ترجمه هم وشوه:
روان مخ په میخانه دی هر هغه چي زموږ پیر دی
اې یارانو! صلاح وکړئ پس د دې مو څه تدبیر دی
* الوقت سیف قاطع. د امام شافعي[رح] وینا ده، (2) کور یعني انګور

د ده فکر له آسمانه، کور(2) کړو ستوری ډك له نوره
دویم نوم يې وخت له کښېښنو، ورتې ووې تېره توره
د دې توري بیان ډېر دی، څو به دا ژبه چلیږي
برېښېدلی مخ چې وينې، دا ژوندون پکښې ځلیږي
چا سره چې وي له خوفه، له امیده بې پروا وي
د موسیٰ تر لاسه روڼ وي، چې کوم لاس نیولی دا وي
په یوه ګوزار د ګټ نه، را روانه دا چینه کړي
په یوه ګوزار دوړنه، وچه دا د سیند سینه کړي
موسیٰ هم په لاس کښې ګله، کلك نیولی دا شمشیر ؤ
هغه ځکه په هر کار کښې، له تدبیره مخکښې تېر ؤ
په دې توره يې دریاب ته، سینه یووړه خیرې ګاره
دوړې پورته کړې له بحره، پکښې ځان ته وکړه لاره
د خیبر د سرکوونکي، شېر خیبر کښې کوم قوت ؤ؟
شافعيؒ چې و ستایله، د دې توري برکت ؤ
د آسمان دا چورلکونه، خو د هر چا د لیدو دي
ت-ګ رات-ګ د شپو او ورځو، د هر چا د پوهېدو دي
اې د شپو ورځو په بند کښې، بندیوانه! شه در یاده
د خپل زړه ننداره وکړه، چې پکښې بله دنیا ده
خپلې خاورې ته د تخم، تروږمۍ ور واچوله

او د وخت د توري مخ تا، یوه کرښه وه ګڼله
بیا په ډانګ د شپو او ورځو، کچ ته و دربدي ګله!
زمانه دي ناپ کوله، داسي لنډه وه دا کله
د شپو، ورځو تار په غاړه، ځان ته تا لکه زنار کړو
لکه پټ باطل فروشه، تود دي دا خوشی بازار کړو
ته کیمیا وې، ته اکسیر وې، اوس يې موټی توري خاورې
زیږېدلی راز د حق وې، خو باطل شوې سپورې خاورې
په رښتیا که مسلمان يې، له ځان آ خوا دا زنار کړه
د ډیوې غوندي روښانه، ته دا غونډه د احرار کړه
خبر نه يې له زمانې چي، دا په اصل څه راغلې
ځکه تا جاوداني هم، ځار شم نه ده پېژندلې
اې! د ورځو، شپو په قید کښې، به تر څو پوري کړېږې
"لي مع الله"* کښې وګوره، د وخت رمز که پوهېږې
وخت روان دی له رفتاره، يې هر څه هر څه پیدا دي
ژوندون هم ځنې یو راز دی، ډېر رازونه د وخت لا دي
وخت د لمر په ګردش نه دی، حقیقت د ده څه بل دی
لمر خو هر ماښام پرېوځي، وخت په مخه روان تل دی

* لی مع الله وقت لایسعني فیه ملك مقرب ولا نبی مرسل الخ (الحدیث)
ژباړه: ما لره د خدای سره یو وخت دی چي نه پکښي مقربې فرښتې او نه بل نبي مرسل پکښي ځایېدای شي. الخ.

دی په وخت کښې عیش او غم هم، عاشوره ده او اختر هم
وخت یو راز دی چې موندلی، تر رڼا سپوږمۍ او لمر هم
اې ناپوهه! تا زمان هم، د مکان غوندې را خور کړو
تا په خپله ناپوهۍ کښې، پرون نور او صباح نور کړو
تا خو خپل ګلستان پرېښو، لکه بوی په تېښته لاړې
په خپل لاس دې زندان جوړ کړو، بندیوان پکښې ولاړې
نه زموږ د وخت اول شته، نه اخیر دی ده لیدلی
د انسان د زړه په باغ کښې، بس پخپله ټوکېدلی
وخت چې چا وه پېژندلو، په ژوندو کښې را ژوندی شي
سحر کله داسې روڼ وي، لکه دی چې ځلندی شي
ژوند پیدا له زمانې دی، زمانه له ژوند پیدا ده
"زمانې ته سپک مه وایئ"[1]، د رسول د خولې وینا ده
درته کړم یوه خبره، برېښېدلې مرغلره
چې عبد[2] څه وي او حر[3] څه وي، راته غوږ کړه سمندره!
عبد د شپو، ورځو حساب کړي، عبث، ګوند بنه څیز شماري
د حر زړه ترې بې پروا وي، زمانه څۀ نه څیز شماري
عبد د شپو ورځه تارونه تنسته بو ده کفن کړي

(1) لا تسبو الدهر فاني انا دهر. ژباړه: زمانې ته سپك مه وايه ځکه چې زه زمانه يم. (حديث)
(2) "عبد" غلام بنده چې د زمان او مكان په قيد كښې اوسي.
(3) چې د زمان او مكان له قيده آزاد اوسي.

او بیا دغه کفن واخلي، پټ پر خپل بې روحه تن کړي
تن د ختې لویه بوخته، حر بهر تر په خپل زور شي
زمانه که ده هر څومره، دی یې ونغاړي پرې خور شي
په کورګي د صبح و شام کښې، عبد مارغه دی ښتی کښته
نه خبر دی له الوته، نه یې خبر دی له لذته
او د حر سینه چې ساه یې، تونده تېزه توده سره ده
دا د ورځو شپو مرغونه، که پوهېږې نو پنجره ده
عبد موندلی موندل غواړي، فطرت داسي د هغه وي
واردات یې په وجود کښې، هیڅ هم نوي نوي نه وي
په یو ځای ولاړ نابوده، سست یې اینبی پېتی پر ساه وي
د سحر او د ماښامه، بس د ده یوه ژړا وي
حر هردم نوی تخلیق کړي، کوي نوي۔ نوي چاره
نوې نوې نغمې خیزي، تل تر تل د ده له تاره
په شانه ګوري ځي وړاندې، خته بس داسي د ده ده
د پرکار د کرښې ګېنه، د حر مخکښې لاره نه ده
زمانه د عبد په پښو کښې، پروت د اوسپنې ځنځیر دی
شکایت یې له تقدیر دی، تل د ده په خونه ویر دی
تل د حر د لوړ همت او، د قضا مشورې کیږي
همګي کېدونکې چارې، د هغه تر لاسه خیزي

څه چي تېر دي څه راتلونکي، په موجود کښې يې دی تمام
په تلوار توندي د حرکښې، کړي اوږدې مودې آرام
ده له بېغه هم له زوږه، داسي پاکه دا خبره
د درك مرجونانه شي، بيا موندای دا مرغلره
وه مي وېل خو ښکاره نه شو، د معنا هغه رخسار ښه
معنا ما ته ګيله وکړه، چي په تورو کښې مي کار څه؟
که ژوندی معنا د تورو، لمري واغوستل خومړه شوه
ستا ساګانې داسي يخې، چي لمبه يې لاړه سړه شوه
پټې او ښکاره خبرې، خو په زړونو کښې پرتې وي
ت-ګ د وخت او راز د ورځو، پټ هم دغسي پکښې وي
اوريدای نه شي په غوږو، که نغمې د وخت د ساز شته
د زړه خونې ته ورکوز شه، پکښې ننه د وخت راز شه
هغه هم وې چرې ورځې، چي زموږ د مټو زور ؤ
د وخت توره مو په لاس کښې، په جهان کښې يې شرنګ خور ؤ
موږ د زړونو په پټو کښې، د دين تخم وشيندلو
د حق مخ مو را څرګند کړو، موږ پلو ترې وارولو
دا دنيا وه سخره غوټه، نوك مو پرانسته که واورې
چي سجدې مو بلندي وکړې، بخت راوېښ شو د دې خاورې
سره شراب د حق په خم کښې، خوند مو يې واخست له ګوټ ګوټه

پخواني شراب خانې مو، په شبخون کړې لوټه۔ لوټه
اې چي ستا په کوزه کې کښې، ډك زاړه شراب دا نن دي
چي ښيښنه ويلي کول کړي، ستا شراب داسي تاوژن دي
له ډېر کبر ځان منتوبه، اډو ګوري هم نه لاندي
د طعنې غشي را ولي، په تش لاس پوري مو خاندي
چرې چرې جام زموږ هم، په دې شان د غونډې خوند ؤ
په سينو سيپو کښې زړونه، مرغلرې ژوند مو ژوند ؤ
منم* نوې زمانه چي، ښايسته په هره خوا ده
دا زموږ کاروان چي تېر شو، له هغو دوړو پيدا ده
دا د حق پټی چي موږ دی، موږ ورکړې خپله وينه
حق پرست د نړۍ وړه، زموږ دا احسان منينه
نړۍ موږه کړه آباده، چي مېړمن مو د تکبير کړه
خپله خاوره مو هر چرته، بس کعبه ځنې تعمير کړه
د اقرا□ تعليم و موږ ته، راکړو خدای د خپلي خوښې
رزق ده زموږ په لاسو، کړو دنيا ته برخې۔ برخې
که له لاس مو تاج او تخت لاړ، لکه خس مه ګڼه ګرګه
بې نوا به يو خو واوره، ګوره مه په سپکه سترګه

---

* دا خبره منلي ده، چي عربو مسلمانانو د سائنس په علمونو کښي دومره ګوتې وهلې وې چي په يورپ کښي د علمونو ننني ترقي د هغوی له اثره ده.

□ اقراء باسم ربك الذی خلق. (سورة علق) ژباړه: ولوله د خپل رب په نامه چا چي پيدا کړ. دا د اولنۍ وحي لفظونه دي چي په رسول کريمρ نازل شوي دي.

ستا په سترګو کښې به موږه، ډېر زيانمن او خوار و زار يو
د زوږ عقل زرې پوهي، ګڼی سم په خطا لار يو
خو دستار د لاالٰه، لوی عزت زموږ پر سر دی
ځار! د دوارو جهانونو، حفاظت زموږ پر سر دی
بې پروا له نن صبا موږ، لېوني په محبت کښې
چا سره مو ژبه کړې، ناست يو تل په هغه پت کښې
موږ د حق په زړه کښې ننه، پراته پټه خزانه يو
وارثان يو د موسیٰ او، د هارون نا بېګانه يوه
لمر، سپوږمی دي ترې روښانه، تاؤ زموږ دی دا تراوسه
شته زموږه په وريځ کښې، تندرونه لا تراوسه
دا زموږه ذات چې وينې، آئينه د خدای د ذات ده
مسلمان په نښانو کښې، نښانه د خدای د ذات ده

# دعا

اې! هغه چې په وجود کښې، د دنيا لکه د ساه يې
هم زموږه د زړه سر يې، هم په تېښته په بل خوا يې
ستا له فيضه دی ميندلی، د ژوند ساز نغمې د خوند
مرګ چې ستا په لار کښې نوم يوړ، کړي حسد ورسره ژوند
يو ځل راشه د ناښادو، زړونو خوني کړه بيا ښادې

بیا مېشته شه په سینو کښې، دا میرې کړه بیا آبادې
اې! زموږ ځنې وغواړه، بیا د ننګ او نوم خبرې
ښه پاخه دا عاشقان کړه، بیا ترې واخله چارې نرې
له نصیبه ګیله من یو، اسویلي موځي براس دی
ستا د حسن نرخ اوچت دی، او زموږ ورته تش لاس دی
پلو لرې کړه له مخه، خوشحال موږ غریبانان کړه
د بلال او سلمان عشق خو، راشه بیا یو ځل ارزان کړه
بیا بې خوبه سترګې راکړه، بیا د زړونو تراړې را
بیا په موږه مینه وکړه، ته فطرت بیا د پارې را
داسي نخښې* راښکاره کړه، د آسمان له بره چېته
چې زموږ د دښمنانو، شي سرونه ورته کښته
موږ خسنو غوندي رغړو، راشه ته مو د اور غر کړه
غیرالله زموږ له اوره، وسوځه پر غرهر کړه
کله راسي چې وګړي، وحدت پرېښی او تار تار دي
هغه راسي پکښې راغلې، سل آرېکې وران مو کار دی
په دنیا کښې لکه ستوري، موږ خواره دانه دانه یو
هم سره خواږه مین یو، هم وبله بېګانه یو

---

* ان نشاء ننزل علیهم من السمآء آیة فظلت اعناقهم لها خاضعین. (الشعرا)
ژباړه: که موږ وغواړو نو په هغوی (کفارو) به له آسمانه نښانې (آیات) را کوز کړو او د هغوی ستونه به ورته زوړند شي.

دا کتاب دی پاڼې پاڼې، غونډې بیا په شیرازه کړه
هغه تېر د درنو مینو، دود زموږه را تازه کړه
د پخوا غونډي مو توند کړه، بیا د خپل خدمت دپاره
بیا په خپلو عاشقانو، خپلې چارې ته و سپاره
لاروي یو منزل موږ ته، د رضا او د تسلیم را
د ایمان قوت په مثل، د ایمان د ابراهیمυ را
اې د "لا" د مشعلې نه، آګاهو ته عشق آګاه کړه
بیا چې راز د الاالله دی، د هغه سره یې آشنا کړه
زه تل سوځم لکه شمعه، دا د نورو غم کومه
دا په غونډه کښې چې ژارم، ژړېدل ورته ښیمه
لویه خدایه! زما اوښکې، ته کړه داسي دل افروزې
لړځېدلي ځلبلاندي، بې ټیکاوه آرام سوزې
چې زې وکرم په باغ کښې، او اورونه زرغونه کړي
او بل خوا ته د قبا نه، د ریدي اورونه مړه کړي
زما زړه دی پرون وړی، سترګې دي زما صبا ته
غونډه کښې لکه تنها یم، کڅې وارومه چا ته
هر چا وکړو دا ګومان چې، راسره یې یارانه ده
زړه مي یو ؤ نه کتلو، د رازونو خزانه ده
پاکه خدایه! په دنیا کښې، ناست یوازي بې اشنا یم

ما دپاره کلیمυ نشته، که زه ونه د سینا یم
زه ظالم او ستمکار یم، ما په ځان وکړه په خپله
تکه سره لمبه د اور ده، ما په خوا کښې وساتله
دا لمبه چي په لمنه، د هوش اور کاندي ور پوري
چي د عقل څه سامان دی، هغه ټول کړي ایرې تورې
دا د عقل لېونتوب هم، دی لنبې دي وربښيلې
هر د علم کالي ژوند نه، دی لمبې دي سوځولې
لمر چي تاؤ د دې نه واخیست، نو آسمان یې شو مقام
هم د دې نه تندرونه، چوړلکونه خوري مدام
د شبنم د سترګې غوندي، په ژړا ژړا بې نور شوم
نو هله امانتګر زه، داسي ننه د پټ اور شوم
چل ما شمعې ته ښیلې، دا ښکاره چي سوځېدله
د دنیا له سترګو پټه، سوځېده مي زاره خپله
خو اخیر له هر وېښته مي، سرې لمبې را وختلې
سرې سکروټې مي د فکر، له رګ رګ و څڅېدلې
زما چوڼې* سرې سکروټې، داني ټولې کړې کې وینې
شوې د ده سندرې ځکه، سوځوونکې اور ورینې
یم په داسي زمانه کښې، چي زړه یې نشته په سینه کښې

* بلبل

مجنون ژاړي لیلا کوم ده، نشته هیڅ په کجاوه کښې
چي یوائي شمعه سوځي، ګران دی نه چي کار آسان دی
یو پتنګ مي د بنې نشته، های ارمان دی های ارمان دی
څوك خوږمن مي چرته نشته زه به څو څارمه لارې
په رازدار پسې به څو وي، زما ورځې نا قرارې
اې چي مخ د ځلولې، په اسمان کښې سپوږمۍ ستوري
دا خپل اور زما نه واخل،ه یو نظر زما په لوري
ته دا خپل امانت واخله، پسته مي له سینې نه
دا جوهر پکښې اغزی شو، اوس مي وکښه له آئینې نه
یا یو زوږ ملګری مل کړه، ته زما سره پر لاره
هغه عشق چي جهان سوز دی، ورته اوس ورکړه هینداره
د څپو سره څپې دي، په دریاب کښې غاړه وتې
اوسي تل ناقرارو کښې، دوی وبله سره نښتې
ستوری ستوري سره مل دي، په آسمان کښې چي بر ښکاري
په زنګون د توري شپې هم، سپوږمۍ اینې دی سر ښکاري
سپینې ورځې خوا د توري، شپې د خوا سره تړلې
نن د خپلې خوینې غوته، د صبا سره تړلې
هر لنډی[*] په اباسین کښې، لاهو چرته په اټك کښې

* لفظي ترجمه به داسي وي:

باد ځپې ځپې روان وي، په خوشبوی کښې چرته ورك شي
هرې ورانۍ ته چې ګورم، نو آباده په نښا ده
لېونی ځي لېوني ته، په يو ځای د دوی ګډا ده
ته بې شکه هغه ذات يې، چې بې مثله يې يکتا يې
خو تا ځان ته تماشه کړه، د دنيا په تماشا يې
زه رېدي غوندي ولاړ يم، دا يو ډکی د بېديا يم
ده چاپېره رانه ګونه، خو بيا هم لکه تنها يم
ما ته هم له خپل کرمه، راکړه داسي يو ملګری
چې رازونه مي دننه، په فطرت کښې وينې زری
داسي مل چي لېونی وي، هم په سول هوشيار وي جوړ وي
د دنيا د هغو د غو، له خيالونو ځنې موړ وي
چې دا خپله مسته چيغه، يې بارې روح ته وسپارمه
بيا يې د زړه په آئينه کښې، څېره خپله و وينمه
چې دا خپلې خاورې واخلم، د هغه وجود ترې جوړ کړم
چې هغه ته زه هم بت شم، هم بتګر شمه زړه سوړ کړم

---

سيند روان وي ځي بهيږي په بل سيند کښې چرته پرېوزځي
باد ځپې ځپې الوځي په خوشبوی کښې چرته کښېوځي